# ځ

**ځ** (cc) ښځ.م.د پښتو الفبې یوولسم توری دی.

**ځا** (cā) ښځ.نر.م. (ج. ځاګانې) کوهی، ځاه.

**ځابانی** (cābā́nay) ص. نر.م. ځاپانی، پرېوتو ته نیږدې، غورځېدونکی، لوېدونکی.

**ځابونک** (cābūnák) نـر.م. د یوه بوټي ځګ دی چې جامې پرې مینځل کېږي.

**ځاپاکی** (cāpā́kay) ص. ځاه پاکوونکی.

**ځاپېره** (cāpéra) ښځ.م. ځپېره، ځپېره، چاپېره.

**ځاڅکی** (cāckáy) نر.م ۱) تڅکی، قطره، څڅواکی؛ ۲) خوږوالی، قدرمني، ګرانښت، مینه لرل.

**ځاڅکی ځاڅکی** (cāckáycāckáy) ق. تڅکی تڅکی قطره قطره.

**ځاڅوکی** (cācūkáy) نر.م. وړوکي ځاڅکی، وړه قطره، د ځاڅکي تصغیر.

**ځاڅېروکی** (cāccrūkáy) نر.م. ګګرکی، ګله ګرکی، د واورو کوچنی دانې، برنجک.

**ځادر** (cādár) نر.م. (ج. ځادرونه) ۱) دوپټه، پټو، چکاله؛ ۲) چادر، اهن چادر.

**ځادرلوندی** (cādarlū́nday) نـر.م. ښـورمک، لږباران، ښورمه

**ځادري** (cādarí) ښـځ.م. ۱) چـادري، بـورقـه، بورکه؛ ۲) ص.نب. د ځـادر، په ځادري پورې اړوند.

**ځار** (cār) نـر.م. ۱) تلاش، لټون؛ ۲) مـراقبت، ساتنه، ځارنه.

**ځارا** (cārā́) ښځ.م. (ج. ځـاراګانې) کینـدل شـوې ځای چې تېپر، ګازرې او... په کې ساتل کېږي.

**ځارڅرخومه** (cārcarxū́ma) ښځ.م. ګرد چاپېره، چارچاپېره، شا وخوا، څلورخواوې.

**ځارځی** (cārǰáy) ا. ځارتون، رصد خانه، زیج.

**ځارښکه** (cārəská) ښځ.م. څـرښکه، سارکه؛ د یوې مرغۍ نوم دی.

**څارل** (cārál) مص. مت. په نظر کې ساتل، په پټه د چا مراقبت کول، څارکونه.

**څارنتون** (cārantún) نر.م. د وترنرۍ ریاست.

**څارند** (cāránd) ص. نر.م. کنټرولر، ثبتوونکی.

**څارندوی** (cārandóy) نر.م ۱) پولیس، امنیتي عسکر ۲) څارکوونکی؛ ۳) سکوټ، سکاوټ هغه څوک چې په څارندويي کې شامل وي.

**څارندويي** (cārandoyí) ښځ.م. د اخلاقي او سپورتي تعلیم او تربیې یو ډول سیستم دی.

**څارنوال** (cāranwā́l)!. مدعي العموم، د تورنو رسمي حقوقي مدافع.

**څارنه** (cārəna) ښځ.م. (ج. څارنې) په نظر کې ساتنه، څوکي کونه، مراقبت کونه..

**څارو** (cārū́) ص. نب ۱) څارونکی، څاری، مراقبت کوونکی، تعقیبوونکی؛ ۲) جاسوس.

**څاروان** (cārwā́n) ص. جوپه مشر، د کاروان میر.

**څارونکی** (cārūnkáy) فا. نر.م. په نظر کې ساتونکي، څوکي کوونکی، تعقیبوونکی.

**څاروی** (cārwáy) نر.م. (ج. څاروي) هغه څلور بولی چې څرکوي او واښه خوري.

**څاره** (cārá) ښځ. م. (ج. څارې) ۱) چاره، علاج؛ ۲) کسب، کار؛ ۳) هغه کنده او ډوغل چې ګنې په کې اینبودل کېږي.

**څاړ** (cāṛ) نر.م. د لم یا غوښې هغه ټوټه چې د لېوه تر حملې وروسته په څاړزي. پسې څړېږي.

**څاړو** (cāṛū́) نر.م. (ج. څاړوګان) ۱) برغ، برغې، برنغ، د نس پرده؛ ۲) دحیوان هغه غوښه چې څیني د خورو ور نه بولي.

**څاړی** (cā́ṛay) نر.م. (ج. څاړي) ۱) دوبښتانو د توبېدلو ناروغي؛ ۲) څوړی، یو ډول خړ رنګې حلاله مرغۍ ده.

**څاږ** (cāẓ) نر.م. د وینې پور د وینې بیه، خون بها.

**څاښت** (cāṣt) ق. ۱) کچه غرمه، بربېښر؛ ۲) نر.م. څښت، تاشت، لیکلی کاغذ دی چې مقدسه محتوا لري او د مذهبي خلکو له خوا ناروغانو ته ورکول کېږي..

**څاښتی** (cāṣtáy) نر.م. دغرمې خوراک، د غرمنۍ، د غرمې زړخوړي، څاښت ناری.

**څاښتي** (cāṣtí) ص. نب. غرمنی، د غرمې، د څاښت، په څاښت پورې تړلی.

**څاښکه** (cāṣká) ښځ.م. (ج. څاښکې) سارکه، څرښکه، ګنډسېره، یو ډول مرغۍ ده.

**څاښه** (cāṣá) ښځ.م. (ج. څاښې) تاوکړې سنۍ، اینځی، انځی، غښتلی پړی.

**څاښی** (cāṣáy) نر.م. دڅرخې محور، څوښه.

**څاک** (cāk) نر.م. (ج. څاکونه) ۱) درز، چاک؛ ۲) نیم سری؛ د سر یو ډول درد دی.

**څاکن** (cākə́n) ص. نر.م. ۱) څڅېدونکی، ترشح کوونکی؛ ۲) څاه ایستونکی، څاه باسونکی؛ ۳) دسیسه کار.

**څاکه** (cāká) ښځ.م. (ج. څاکې) ۱) د غره تېره څوکه؛ ۲) دڅادر پیڅکه، د څادر څنډه.

**څاکی** (cākáy) نر.م. (ج. څاکي) د څادر پیڅکه، د څادر څنډه، د څادر پیڅه.

**څاګله** (cāgalá) ښځ.م. ساګلې، ساګله، پتیله، د ارتې خولې دیګچې.

**څاګوړی** (cāgúṛay) نر.م. ډینګری، څاګۍ، ورکوټی کوهی، وړه څاه.

**څاګۍ** (cāgə́y) نر.م. څاه ګۍ، وړه څاه.

**څاله** (cā́la) ښځ.م. څېر، څېرۍ، کوډلې، کوډۍ، هغه ساله او کوډۍ چې د پتۍ د فصل د ساتلو لپاره جوړېږي.

**څاندو** (cāndū́) نر.م. ساندو، باجه، دخښېنې مېړه.

**څانګ** (cāng) نر.م. ١) وزر، شاهپر؛ ٢) ښاخ، شاخ، خاخ، څانګه.

**څانګ څانګ** (cā́ngcā́ng) ق. ښاخ ښاخ؛ وزر وزر.

**څانګو** (cāngū́) نر.م. ١) دغرکې موتی، د څک موتی؛ ٢) د منداړو تناو، د غرکې تناو.

**څانګوال** (cāngawā́l) ص. د څانګې (مسلک) خاوند، ماهر.

**څانګور** (cāngawár) ص. وزروال، ګڼ اړخیز.

**څانګورتوغندی** (cāngawartoğandáy) ا. وزروال توغندی، راکټ.

**څانګوړی** (cāngūṛáy) ښځ. م. ١) وړه څانګه، وړکوټی ښاخ؛ ٢) نر.م. وړوکی وزر.

**څانګه** (cánga) ښځ. م. (ج. څانګې) ١) درد، بربېن، څریکه؛ ٢) ښاخ؛ ٣) شعبه، اداره؛ ٤) نېزه، بلمه؛ ٥) ښځینه شخصي نوم.

**څانګې څانګې** (cā́ngecā́nge) ص. نسب. ښاخ ښاخ، برخې برخې، شعبې شعبې.

**څانګې وانګې** (cā́ngewā́nge) ص. نسب. ١) ښاخ ښاخ؛ ٢) توتې توتې؛ ٣) ګوډ؛ ٤) سست، لټ، تنبل.

**څانی** (cāṇáy) نر.م. دربېل شویو غنمو له پټي څخه د وریو ټولونکی.

**څاو** (cāw) نر.م. ١) څارنه، مراقبت؛ ٢) په ژمي کې د ګازرو، منګېړتو او... دساتلو لپاره تر ځمکې لاندې ژور کړی ځای.

**څاوار** (cāwā́r) نر.م ١) مصنوعي وېښتان، څاواره ٢) دېښځې یو ډول ګاڼه؛ ٣) ځینې ښځې له سر وېښتانو سره د وریو تارونه تړي او خپلې کلۍ په کې ځوړندوي.

**څاوتی** (cāwtáy) نر.م. څاښتی، نیم سری.

**څاه** (cāh) نر.ښځ.م. و.ګ. څا.

**څبله** (cábla) ق. څبله، یو تر بله، په خپلو کې.

**څپ** (cap) نر.م. (ج. څپونه) ١) د پښې د ښکالو اواز؛ ٢) دغلې د پاکولو اواز.

**څپا** (capā́) ښځ.م. د پښو اوازونه.

**څپاری** (capāráy) نر.م. ١) څپرکی، څپری، څاپولی، د واورې توته؛ ٢) یو ولپه اوبه.

**څپاړو** (capāṛū́) ص. نب. د نسه، ریخن.

**څپاړه** (capāṛá) ښځ.م. دست، ریخ، اسهال.

**څپان** (capā́n) نر.م. (ج. څپانونه) د اوبو توپان.

**څپاند** (capā́nd) ص. نر.م. ج. څپې وهونکی، هغه سیند یا دریاب چې څپې وهي.

**څپاڼ** (capā́ṇ) نر.م. کتار، قطار، صف، چیل.

**څپاڼی** (capāṇáy) ص. نر.م. ګډوډ، پریشان.

**څپټی** (capaṭáy) نر.م. (ج. څپټي) پوستی، پاستی، چپاتی، لویه او نرۍ ډوډۍ.

**څپڅپانی** (capcapā́nay) ص. نر.م. ١) تار په تار، ګډوډ؛ ٢) کرباب، اړ؛ ٣) نر.م. د کوچنیانو یو ډول لوبه ده.

**څپڅپی** (capcapáy) نر.م. (ج. څپڅپي) لوی غلبېل، پرویزی، چچ.

**څپر** (capár) نر.م. (ج. څپرونه) ١) و.ګ. چپری؛ ٢) خونه، څاله، څپری؛ ٣) دغره پر سر اواره ځمکه؛ ٤) توک، د ډوډۍ توته؛ ٥) د بام ججه.

**څپرغوږی** (capargwáẓay) ص. نر.م. ١) غوږور، پلن غوږی؛ ٢) نر.م. هاتي، فیل.

**څپرکی** (capárkay) نر.م. (ج. څپرکي) ١) توک، د ډوډۍ توته؛ ٢) د کاڼي یا لرګي توته؛ ٣) د واورې پاغونده، څپری؛ ٤) حصه، برخه، فصل، باب.

**څپري** (capáray) نر.م. (ج. څپري) ۱) جلا شوې ټوټه؛ ۲) د اورې پاغونده؛ ۳) د غره په سر اواره ځمکه؛ ٤) کوچنی د ختو ډنډ.

**څپرۍ** (caparáy) ښځ.م ۱) څپر، کوډله؛ ۲) د آس له وېښتانو څخه جوړه شوې ګانه چې د ټټو د پاسه يې ځوړنده وي.

**څپړ** (capáṛ) نر.م. ۱) د اوښ يا فيل د پښې تلی؛ ۲) د سړي د پښې پلن تلی؛ ۳) څپېړه، يو غرنی بوټی دی؛ ٤) څپېړه، څاپېړه.

**څپړاخه** (capaṛā́xa) ښځ.م. چاپېړه، چپلاخه، څپلاخه، څاپېړه، څپېړه، څپېړ.

**څپړدخ** (capaṛdáx) نر.م. مېږګاټې، ګاټې، د کوچنيانو يوه لوبه ده.

**څپړغوږی** (capaṛǧwáẓay) ص. نر.م. و.ګ. څپر غوږی.

**څپړکی** (capáṛkay) نر.م. څپک، څپق، د څلورو ګوتو په اندازه.

**څپړور** (capaṛawár) ص. نر.م. د لويو پښو خاوند.

**څپړی** (capṛáy) نر.م. د پښېرک په څېر يو ډول واښه دي.

**څپړۍ** (capaṛáy) ښځ.م. ۱) د توپ ډنډې ډنډه؛ ۲) د اورې راشپېلک؛ ۳) ښځ.م.ج. څپلۍ، کېږۍ، کېږۍ؛ ٤) ښځ.م. ټاپوري، دانګوري، هغه لرګی چې ګوډ يې ګرځېدو لپاره تخرګ لاندې نيسي.

**څپښه** (capáṣa) ښځ.م. ۱) څپلکه، چپلکه، زړه پنه يا بوټ؛ ۲) التکه.

**څپک** (capák) نر.م ۱) د ډوډۍ ټوکره؛ ۲) څپړکی، څپق، د لاس د څلورو نښتو ګوتو په اندازه.

**څپکه** (capáka) ښځ.م. رېبده، د ډوډۍ پخولو يوه آله ده.

**څپکی** (capakáy) نر.م. قمار، جوارۍ، شرط.

**څپل** (capál) نر.م. ۱) د مرغانو د وزرونو ترپېدنه؛ ۲) چوپل؛ ۳) څپ کونه، چپې کونه.

**څپلاخه** (caplā́xa) ښځ.م. و.ګ. څپړاخه.

**څپلاک** (capláak) ص. نر.م.ج. ۱) ګڼ، ګور؛ ۲) ګونجلک، ګونځې؛ ۳) ګهوړ؛ ٤) کږمنډلی ۵) ځوړولی، کړولی.

**څپلک** (caplák) نر.م. ۱) هغه څه چې د زړښت له امله کلک شوي وي لکه څرمن؛ ۲) د پښو کولو هغه شی چې د زړښت له امله وچ، سخت او تنګ شوی وي لکه زړه پنه، وچه څپلۍ.

**څپلکې** (capláke) ښځ.م. چپړکې، چپلکې، د پلاستيک يا څرمنې څپلۍ.

**څپلور** (caplór) ص. نر.م. د اوږدو پښو خاوند.

**څپلۍ** (capláy) ښځ.م. ۱) ربړۍ، کېږۍ؛ ۲) له دروزې، مزرۍ يا څرمنې څخه جوړ د پښو کولو شی؛ ۳) د نېزه بازۍ مېخ چې د سپاره په وسيله په نېزې سره وهل کېږي؛ ٤) د څپر د پاسه اچول شوې څنګل؛ ۵) تاوراتاو، منجيله.

**څپلۍ ګنډ** (caplaygand) نر.م. د ډاکټر د راوستلو فيس، يا د چا د راوستلو او کارکولو مزد.

**څپن غوږی** (capangwáẓay) نر.م. د غوږ نرمی، د غوږ پستکی، د غوږ بوختکی.

**څپنۍ** (capanáy) ښځ.م. ۱) د کونډې مړوتی، موتانه، د کونډې هغه برخه چې بزګر د ييوې کولو په وخت کې لاس ورباندې ږدي؛ ۲) پانه، سپېنه، شپېنه، چنی، سپينه.

**څپنزری** (cpanzáray) نر.م. څنزری، تنزری، تيهو، بډراج، چنجری، يو ډول مرغه دی.

**څپوټکی** (caputákay) نر.م. څپوټی، کوچنی دوپټه، وړوکې لوپټه، ورکوټی زړوکی.

**ځپول**[1] (capól) ص. نر.م. گور گوتي وهښته، گڼ گور وهښتان، بېر او ځنگ وهښتان، ځپوله.

**ځپول**[2] (capawál) مص. مت. ۱) ځپ کول، په چج سره غله پاکول؛ ۲) مچول، ښکولول؛ ۳) ځان پسې پښې را ښکل.

**ځپول ځنی** (capolcənay) ص. نر.م. ځپولی، ببرسری، سخ سری.

**ځپولی** (capoláy) ص. نر.م ۱) ببر او گڼ وهښتان لرونکی؛ ۲) د واورې لوی ځپولی؛ ۳) نر.م. د میو، موټو یا پلي لرونکو حبوباتو د وهښو ایښودل شوی دبری یا ډلی؛ ٤) ځپونی، صافي؛ ۵) دسترخوان.

**ځپولې** (capolé) ښځ.م. خاپوړې، خرپوځې.

**ځپونه** (capawána) ښځ.م. (ج. ځپونې) ځپ وهنه، ځپ کونه، غله په جج سره پاکونه.

**ځپونی** (capūṇay) نر.م ۱) دسترخوان، کندوری، ځپونکی، کوندوری؛ ۲) ځپولی؛ ۳) صافي.

**ځپه** (cápa) ښځ.م. (ج. ځپې) ۱) موج، چپه، د اوبو موج؛ ۲) چپه، بېهوښي، بېسدي.

**ځپهار** (capahā́r) نر.م. د اوبو د ځپو، د کښتۍ د ځپو، د غلې د پاکولو او د اوبو د پښو اواز.

**ځپیاکه** (capyáka) ښځ.م. ۱) تپی، تپی، بدره، سرپه، توپی؛ ۲) دومبکی، پیاځه، ډمکی؛ ۳) یو ډول سابه دي.

**ځپېدل** (capedə́l) مص. ل. ۱) غله چج کېدل؛ ۲) مچېدل؛ ۳) د اوبو ځپې وهل؛ ۵) ورو ورو خوځېدل.

**ځپېړه**[1] (capéṛa) ښځ.م (ج. ځپېړې) ۱) وگ. خیراخه؛ ۲) مایله ځمکه، کښته؛ ۳) پیکه، ژبړ، تت؛ ۲) وېرېدونکی، ډارن.

**ځپیز** (capíz) ص. هجایي، سېلابیک.

**ځپیز خجیز** (capízxajíz) ص. سېلابتر نبیک (شعري وزن).

**ځپېله** (capéla) ښځ.م. (ج. ځپېلې) منډاوره، د دوو غوایانو غویل.

**ځتری** (catráy) نر.م. ۱) د ژرندې تسورک؛ ۲) د ژرندې د پله خواته د اوړه تولېدو ځای.

**ځته** (catá) ښځ.م. ۱) دالان؛ ۲) گواته، د ځیباکو دلی، کرزور، کنزور.

**ځټ** (caṭ) نر.م. ۱) ورمېږ، د غاړې د شا طرف؛ ۲) د هر شي شا؛ ۳) غیاب، پسې شا.

**ځټک** (c(u,ə)ṭák) نر.م. څوټک، چیټک، ځټکی، ځټک، د مېخ ټکولو آله.

**ځټکوری** (caṭkūray) نر.م. ۱) ستکوری، لوغړن لرگی، نیم سوی غوندې لرگی؛ ۲) ص. نر.م. ۱) کوروراني؛ ۲) سپېره، منحوس.

**ځټل** (caṭál) مص. مت ۱) ژبه پرې تېرول، په لوښې پورې گوته را ښکل او پر گوته باندې ژبه تېرول؛ ۲) تباه کېدل، برباد بېدل، ستیول؛ ۳) د چا مور، پلار یا خپلوان مړه کېدل.

**ځټمخ** (caṭmáx) ق. ۱) پرمخ، په بل مخ اوښتی؛ ۲) دوه مخی، دو رویه، منافق.

**ځټمخی** (caṭmə́xay) ص.نر.م. ۱) د بدې څېرې، بد شکله؛ ۲) خوسا، خوږجن.

**ځټمری** (caṭmaráy) ښځ.م. د څټ مری، جوړ جوړ، ځټمبری.

**ځټوټ** (caṭwáṭ) نر.م. ۱) ستوټ، ناڅاپه مرگ؛ ۲) بېخي تباه؛ ۳) د چا په مینه کې لېونی.

**ځټه** (cáṭa) ښځ.م. (ج. ځټې) ۱) دوه اندېزه بار، یو جوال غله؛ ۲) پېټی، بوج؛ ۳) دغلې گودام؛ ٤) یو ټاکلی وزن دی؛ ۵) ستېه، تنه، د ونې د ریښو او ښاخونو ترمنځ برخه.

**څټی** (caṭáy) ښځ.م. ۱) څېټی، د تبر پڅه خوا، ستی، چيټی؛ ۲) د جوت او توک په لوبه کې چې کوم شرط ور کول کېږي؛ ۳) د گلونو گېډی.

**څټی** (caṭáy) نر.م. (ج. څټهي) څېټی، ستری، د غنمو یا اوربشو رېبل شوي گېډی.

**څڅه** (cáča) ښځ.م. اڅې، چه، د بزې د شړلو غږ.

**څڅ** (cac) نر.م. څڅی، سسی، آلو اخار، یو ډول ازغی دی.

**څڅبېکی** (cacbékay) نر.م. ۱) کڅوبی، لکی، د کوچنيانو یو ډول ناروغي ده؛ ۲) په والگي کې د مرۍ د خوږېدو ناروغي؛ ۳) ص. نر.م. تېز، رټ، تکړه، گړندی، چست، چالاک.

**څڅن** (cacán) ص.نر.م. څڅونکی، ترشح کوونکی

**څڅند** (cacánd) ص. نر.م. و گ. څڅن.

**څڅنکی** (cacúnkay) فا. نر.م. چيچونکی، کرېدونکی هډوکی، کرپندوکی.

**څڅواکی** (cacwākay) نر.م. څاڅکی، قطره.

**څڅوب** (cacób) نر.م. څڅېدنه، څڅوبی، چکک.

**څڅوبکی** (cacobkáy) نر.م. څاڅکی، څڅواکی، د باران قطره.

**څڅوبی** (cacóbay) نر.م. ۱) څڅېده، چکک؛ ۲) هغه چینه چې څاڅکي څاڅکي اوبه ترې راوځي؛ ۳) څنډلی، د دېوال یا د چت چجه.

**څڅوری** (cacóray) نر.م. پاتې شونی، هغه ډوډۍ چې له خوراک څخه پاتې شوې وي.

**څڅول** (cacawál) مص. مت. ۱) څاڅکی څاڅکی تویول؛ ۲) نینول؛ ۳) شړول (اوبه)؛ ٤) تویول او شړول (لکه د ډوډۍ څڅول).

**څڅون** (cacún) نر.م. ننېدنه، نینېدنه، ننېده.

**څڅوېکی** (cacwekáy) نر.م. څاڅکی، قطره.

**څڅی** (cacáy) ښځ.م. ناوه، پرناله، تری، چر.

**څڅېدل** (cacedál) مص. ل. ۱) څاڅکی څاڅکی راتلل، څکېدل؛ ۲) نینېدل؛ ۳) تويېدل، شړېدل لکه ډوډۍ څڅېدل.

**څځله** (caʒlá) ښځ.م. سځله، سجده.

**څخاک** (cxāk) نر.م. سخات، اسقاط، سکوت.

**څخاندی** (cxānday) نر.م. خزنده، هغه شمزی لرونکی ژوی دی چې د لومړي ځل لپاره یې په وچه کې د ژوندانه سره توافق موندلی دی.

**څخڅخکي** (caxcaxakí) نر.ج. د اوبو پړومبې، د اوبو پوکنۍ، بړبوکی، خوپنی.

**څخڅه** (caxcá) ښځ.م. یو ډول بوټی دی.

**څخړه** (cxə́ra) ښځ.م. ۱) لوټ، ولجه، بیورمه، غنیمت؛ ۲) د خلکو ریسکه، یو ډله خلک.

**څخړه** (caxrá) ښځ.م. چوخنه، چوخړه، چخه، د سترگو په کونجو کې خړ مواد.

**څخکو** (caxkú) نر.م. څنبکو، څابنکو، چاشکو، چکنبو، یو مشهوره دوا ده.

**څخکي** (cxakí) ښځ.م. د پسه غوښه.

**څخل** (cxal) مص.مت. چخړېل، سیخل، ځیخل، په زوره ننه ایستل، سره کوټه کول.

**څخو** (caxó) ص. نب. نوکی، متکې شی، ډېر کم شی، لږ غوندې، پوټی غوندې.

**څخول** (caxawə́l) مص. مت. څکول، په ځمکه باندې راښکول، پر ځمکه راښکل.

**څخه** (cxa) ربط ۱) شکه، سره، نږدو؛ ۲) په واک کې، لاس لاندې؛ ۳) ورنه، ترينه، ورځنې، له؛ ٤) څه خبر یم، نه پوهېږم، خبر نه یم.

**څخهار** (caxahār) نر.م. پشهار، پښهار، د حیوان د حلالولو په وخت کې د وینې اواز.

**څخی** (cxay) نر.م. ۱) خوسی، خوسکی، گبلگی، سخوندر؛ ۲) د کوچنيانو یوه لوبه ده.

**څخېدل** (cxedə́l) مص. ل. ۱) څکېدل؛ ۲) پر څلورو تلل، خاپوړې کول.

**څر** (car) نر.م. ۱) څرې، څرونده، څرېدنه؛ ۲) د توکر د څیرې کېدو اواز؛ ۳) د واورې سر، سرجه؛ ٤) ص. نر.م. بېرندوکی، وېرندونکی، د ارن.

**څراغ** (c(i,ə)rā́g) نر.م. چراغ، ډېوه.

**څراو** (carā́w) څراو، ورشو، چرا، څرځای.

**څرب** (c(u,ə)rb) ص.نر.م ۱) څورب، تیار، چاغ؛ ۲) تازه، ساتلی.

**څربښت** (carbəṣt) نر.م ۱) څوربوالی، څربوالی، چاغښت؛ ۲) مستي، خرتیزي، لته پېر.

**څربول** (carbawə́l) مص.مت. ۱) شلنډول، چاغول ۲) مستول.

**څربوله** (carbolá) ښځ.م. (ج. څربولې) کاسنی، یو ډول تریخ بوټی دی. انګوپا، انوپا، هند بید او هندبا هم ورته وایي.

**څربېدل** (carbedə́l) مص. ل. څوربېدل، چاغېدل، شلنډېدل، مزي کېدل.

**څرپ** (crap) نر.م. د مرغانو د وزرو د تپېدو اواز.

**څرپول** (carpawə́l) مص. مت. تپول، سرپول.

**څرڅر** (carcár) نر.م. اوښ ته د اوبو د ورکولو په وخت غږ.

**څرڅره** (carcə́ra) ښځ.م. چرچره، چنچنه، چرچنه، یو ډول مرغی ده.

**څرخ** (carx) نر.م. ۱) پیر، تاو، چورلک، تاوېدنه؛ ۲) ډت، د چړو د تېره کولو څرخ؛ ۳) ګډا، نڅا؛ ٤) ارټ، هغه پرداره آله چې ژرنده پرې چورلي.

**څرخاو** (carxā́w) نر.م. (ج. څرخاونه) ګرداو، ګرداب، غوړ، څرخوبی، غورندی، ډوبی.

**څرخبانی** (carxbā́nay) نر.م. بازینګر، نڅا کوونکی، ګډېدونکی، نتوی، لبنتی.

**څرخک** (carxák) نر.م. (ج. څرخکونه) یو ډول ښکاري مرغه دی.

**څرخکه** (carxə́ka) ښځ.م. و.ګ. سارکه.

**څرخکی** (carxakáy) نر.م. څوبنه، اتهران؛ یو لرګینه آله ده چې وړی پرې ورېشي.

**څرخ لرګی** (carxlargáy) نر.م. ۱) څرخکی، د څرخې هغه لرګی چې تاوېږي؛ ۲) د لاسي څرخې اوسنی رېشلو لرګی.

**څرخند** (carxánd) ص.نر. ۱) څرګنده، سرسري، سطحي؛ ۲) څرخنده، چورلېدونکی.

**څرخندوکی** (carxondū́kay) فا.نر.م ۱) چورلندی، بانیچغ، غنجلی، اندرچو، د کوچنیانو یو ډول لوبه ده؛ ۲) لاټو، ګرځندی.

**څرخنکی** (carxankáy) نر.م. ۱) څوبنه، څوخه، هغه لرګی چې وړی پرې ورېښل کېږي.

**څرخنی** (carxanáy) نر.م. ۱) خوزی، ژغوری، ښوزی، د وریجو د تلبر په منځ کې ژور ځای چې لندبل په کې اچوي؛ ۲) ګرداب، څرخوبی؛ ۳) بانیچغ؛ ٤) لاټو، ګرځندی، څرخندوکی.

**څرخوکی** (carxūkay) نر.م. څرخ لرګی، څرخنکی، د څوبنې او څرخې هغه لرګی چې تاوېږي.

**څرخول** (carxawə́l) مص. مت. ۱) چورلول، تاوول، څرخ ورکول؛ ۲) ګرځول، ښوررول.

**څرخه** (carxá) ښځ.م. یوه آله ده چې د هغې سره له مالوچو څخه تار جوړېږي؛ ۲) د ګنډلو د ستنې تومبنه.

**څرخی** (carxáy) نر.م. ۱) د وړیو ګونجي، د وړیو غونداری، د تار کلوله؛ ۲) چارشه، څرخه، د وړیو د ورېشلو آله.

**څرخېدل** (carxedə́l) مص. ل ۱) چورلېدل، تاوېدل چورلېدل؛ ۲) ګرځېدل.

**څرښند** (carṣánd) ص. نب. و ګ. څرخند.

**څرښنده** (carṣə́nda) ښځ.م. ۱) څـرښه، کرښه، هغه ليکه يا کرښه چې د کوم شي د کښولو څخه پيدا کېږي؛ ۲) منښنه، مېنه؛ ۲) نژدېوالی.

**څرښه** (carṣá) ښځ.م. و ګ. څرښنده.

**څرک** (crak) نر.م. ۱) راښکاره کېدنه، رابرسېره کېدنه (لکه د لمر سترګه) ۲) لارښودونکی، سراغې؛ ۳) نښه، نښانه، درک، لټه، پته.

**څرکا** (crakā́) ښځ.م. ۱) څالک، رڼا، ځلک، ځلا؛ ۲) څڅا، د څاڅکو پرېوتلو اواز.

**څرکبني** (crakabní) ا. پلټنه، لټون، جاسوسي.

**څرکبه** (crakbá) ص.نب. جاسوس، څارونکی.

**څرکول**(۱) (crakawə́l) مص. مت. برېښول، ځلول، پرقول، پړ کول، په څرېکو راوستل.

**څرکول**(۲) (carkawə́l) مص. مت. وابښه خوړل، څرکول، د څارويو وښو خوړل او څار کول.

**څرکهار** (crakahā́r) نر.ج. څرا، د څاڅکو د پرله پسې توېېدو اواز.

**څرکېدل** (crakedə́l) مص. ل. ۱) برېښېدل، ځلېدل، پرکېدل؛ ۲) څرک وهل، لمر راختل؛ ۳) په څرېکو راتلل.

**څرګند** (cargánd) ص. نر.م.ج. ښکاره، ظاهر، جوت، بلنګ، معلوم، اوڅار.

**څرګندتوب** (cargandtób) نر.م. څرګندتيا، څرګندوالی، ښکاره کېدنه، ظاهرېدنه.

**څرګندني** (cargandaní) ص. د څرګندنې وړ، بياني، توضيحي، افادي.

**څرګندول** (cargandawə́l) مص. مت. ۱) ښکاره کول، جوتول، اوڅارول؛ ۲) برېښدول.

**څرګندون** (cargandū́n) ا. څرګندونه، ښکاره کونه، څرګندنه.

**څرګندوی** (cargandóy) ص. نر.م. ظاهروونکی، ښکاره کوونکی، څرګندوونکی.

**څرګندېدل** (cargandedə́l) مص. ل. ظاهرېدل، ښکاره کېدل، جوتېدل.

**څرګه** (cargá) ښځ.م. بزبو، حق دوسته مارغه، يو ډول مرغۍ ده چې د شپې له خوا ځان په ونه ځوړندوي او د حق ناري وهي.

**څرګی** (cragáy) نر.م. يو ډول بوم، يو راز ګونګی.

**څرمښکی** (carmaṣkə́y) ښځ.م. شرموښکی، چرمښکی، چرمشکی، چرمشکه.

**څرمن** (carmán) ښځ.م ۱) پوستکی، وڼن، چرم، ګګاره؛ ۲) پوخ او رنګ شوی پوستکی.

**څرمن باب** (carmanbā́b) ا. څرمني څيزونه، څرمين توکي.

**څرمني** (carmanáy) ص.نر.م. له څرمنې نه جوړ، د ساختن نه جوړ، ساختي.

**څرمه** (c(i,ə)rmá) ق. ۱) څېرمه، نېږدې، جوخت، په خواکې؛ ۲) ښځ.م. ګاونډی؛ ۳) حاشيه.

**څرنده** (carə́ndə) فا. نر.م. څرېدونکی، څرونکی، خوراک کوونکی څاروی.

**څرنګتيا** (carangtyā́) ا. و ګ.: څرنګوالی.

**څرنګوالی** (carangwā́lay) نر.م. څرنګتوب، څه ډولتوب، ډول، بڼه، شکل، کيفيت.

**څرنګه** (cə́ranga) ص. نب. ۱) څه رنګه، څه ډول؛ ۲) ق. ځکه، له دې وجهې، په دې سبب، له دې امله.

**څرو** (carū́) نر.م. ۱) د اور رڼا؛ ۲) د کار تېزي، د کار پياوړتوب؛ ۳) ص. نب. رسوا، ښکاره.

**څروټکه** (carwaṭká) ښځ.م. سکروټه، بل سکور.

**څرول** (carawə́l) مص. مت. پوول، مال د څر لپاره څرځای ته بېول.

**ځروونکی** (carawū́nkay) فا. نر.م. پـوونکی، مال د ځر لپاره بیوونکی، پادوان، شپون.

**ځروه** (carwá) ښځ.م. ششی، په کښت کې انسان ته ورته ښځ کړی نشان.

**ځروی** (carwáy) نر.م ۱) لک شوی، برلک دوری، کودی؛ ۲) نښانه؛ ۳) حد، برید، پوله.

**ځره**[1] (cara) ښځ.م. ځره خشمه، اره، د لـرګـي د پرې کولو آله، د ښاخونو د ریبلو آله.

**ځره**[2] (cra) ښځ. ند. دځوکیداری غږ، دخبر دار غږ.

**ځره لور** (caralór) نر.م. د اړې په څېر لور.

**ځری** (caráy) ښځ.م. ۱) د یوې مرۍ نوم؛ ۲) دچلم سرخانه؛ ۳) د زیـړ ګلاب بوټی؛ ٤) چمچی، دمتې چمچی، د سټنې برغولی.

**ځری** (caráy) نر.م ۱) سرباری؛ ۲) متی، پورځنګ؛ ۳) د مزریو یا منجو ترنګړ؛ ٤) رنګ نشربدنه؛ ۲) اثر، خپربدنه، تیتېدنه، سرایت.

**ځرې** (caré) ص. نب. و.ګ. څنګه.

**ځرېدل** (caredә́l) مص. ل. ۱) ځرل، مـال څـاروی ځرېدل؛ ۲) پرېدل، ځروهل، خـروهل، په دستو کېدل، له نسه کېدل.

**ځریکه** (crīká) ښځ.م. ۱) د لمـر وړانګـه، د لمـر لومړنی شغله؛ ۲) درد، څانګه، خوږه.

**ځړ** (caṛ) نر.م. ۱) ځر، مـال ځـربدنه؛ ۲) هغه پـړی چې سرکښن څاروي پرې تړل کېږي.

**ځړا** (caṛā́) ښځ.م. ۱) ورشـو، څـراو، ځـرځـای؛ ۲) ځر، څر، چر.

**ځړپ** (cṛap) نر.م. چړپ، د اوبو د توېېدو اواز.

**ځړپن** (cṛapán) نر.م. چړپن، پوچ ویونکی.

**ځړپول** (cṛapawә́l) مص. مت. ۱) بې ځایه غږول؛ ۲) چړپول، شړپول.

**ځړپېدل** (cṛapedә́l) مص. ل. چړپېدل، شړپېدل.

**ځړځای** (caṛjā́y) نر.م. ورشو، ځړاو.

**ځړک** (cṛak) نر.م. ۱) چړک، د لـرګي د ماتېدو اواز؛ ۲) ځځېدنه؛ ۳) ځمچو، ارم، تمبه.

**ځړکه** (cṛáka) ښځ.م. ځړیکه، چړکه درد، څانګه.

**ځړل** (caṛә́l) مص. ل. ځرېدل، ځړېدل.

**ځړمنی** (caṛmә́nay) نـر.م. ځړمـونی، پسرلی، سپرلی، د کال لومړنی فصل، ځړمونی.

**ځړنی** (caṛnáy) ښځ.م. ۱) ککری، د سر کېړی؛ ۲) نذري کاکل.

**ځړوکی** (cṛū́kay) نر.م. لتـوړه، خـرخوږی، لته، څېره، چیره، ریتاړه.

**ځړونګه** (cṛūngá) ښځ.م. ۱) ځړنګه، د جلغوځو ونه؛ ۲) د لمنځې تنکې غوړګه.

**ځړه**[1] (cṛa) ښځ.م. د سپي حمله، د سپي برید.

**ځړه**[2] (caṛá) ص. نر.م ۱) ګـوښی، یوازې، مجرد؛ ۲) بې بار و بنې سپور؛ ۳) خـالي، تش، فقط؛ ٤) بالکل؛ ۵) هغه مجرد چې د مزدورۍ لپاره له ملک څخه وځي.

**ځړه پانه** (caṛapā́na) ښځ.م. پانو، کاوو، کافو.

**ځړه توب** (caṛatób) نر.م. جړه توب، یوازېوالی، تنهایي، ځړه ګي، ګوښي والی، لونړتوب.

**ځړه خشمه** (caṛaxášma) ښـځ.م. اره، ځـره، ځړنازه، فلزي غابنوره آله ده.

**ځړه ګي** (caṛagí) ښځ.م. ځړه توب، یـوازې والی، ګوښي توب، تنهایي، جره توب.

**ځړه لار** (caṛalā́r) ښځ.م. د پلیـو لاره، پیاده رو، ځړه واټ، پلي لاره، درې ګزی.

**ځړه نازه** (caṛanā́za) ښځ.م. ځـره خشمه، ځـره، اره، فلزي غابنوره آله ده.

**ځړه وړی** (caṛawáṛay) نـر.م. ځـړه، ګوښي او یوازې، مسافر.

**څړول** (caṛawə́l) مص. مت. څرول، پوول، پېول، څاروي او حیوانات ورشو ته بوول.

**څړی** (caṛáy) نر.م. ۱) نوکر، ملازم؛ ۲) د تناره د پاکولو ساپې؛ ۳) د څناور ځل، د غوايي ځل.

**څړۍ** (caṛə́y) ښځ.م. پلکی، چوټکه، په ککرۍ د وېښتو ځوندی؛ ۲) د غرکې لاندنۍ برخه چې ګنډل شوې وي؛ ۳) سوکه، سر، د کېږدیو د تېنګولو لپاره لرګی.

**څړېدل** (caṛedə́l) مص. ل. و ګ. څرېدل.

**څړیکه** (cṛiká) ښځ.م. چړیکه، چړکه، سخت درد.

**څړي وړی** (caṛaywaṛáy) ص. نر.م. د تش لاس لاروی، یوازې مسافر، تنها لاروی.

**څړي وړي** (caṛiwaṛí) نر.م. خواره واره پاتې شوني.

**څز** (caz) نر.م. جز، دوازګې د زاز بوټو او غوړیو د سره کولو اواز.

**څښاک** (cṣāk) نر.م. څښل، ځکل، څښنه، چښل.

**څښتن** (caṣtán) نر.م. ۱) الله تعالی؛ ۲) مالک، خاوند؛ ۳) بادار؛ ٤) مېړه.

**څښتنتوب** (caṣtantób) نر.م. ۱) څښتنوالی؛ ۲) مېړه توب، مېړه والی.

**څښتونی** (caṣtúnay) نر.م. کمکی دسمال، وړوکی رویمال، کوچنی دسمال.

**څښته** (caṣta) ښځ.م. پخلی، د ډوډۍ یا کتغ پخول.

**څښ څوری** (caṣcoráy) نر.م. و ګ. تسکوره.

**څښکله** (caṣkála) مص. نب. څشکله، څرنګه، څنګه، چشکله، سشکله.

**څښکو** (caṣkū́) نر.م. چاکسو، څاښکو، چاشکو.

**څښکوری** (caṣkū́ray) نر.م. ۱) څرکه، خوښسه، چوښکه، چړوک، چوشکی؛ ۲) نلکه، وړوکی نل؛ ۳) د وړو هلکانو آله.

**څښکوړی** (caṣkū́ṛay) نر.م. څرمن، پوست، چرم.

**څښل** (cṣəl) مص. ل. څکل، چښل، چیکل.

**څښندی** (cṣandáy) ص. نر.م. ښویېدونکی، څښېدونکی، څکېدونکی، کښېدونکی.

**څښول** (cṣawə́l) مص. مت. ښویول، څکول، څخول، راکښل، کښول.

**څښهاری** (caṣahā́ray) نر.م. د یو شي ورو او نرم غږ، خفیف اواز.

**څښی** (caṣáy) نر.م. ۱) ګیلکی، خوسی، د غوا بچی؛ ۲) څه شی، څه څیز، کوم څه.

**څښېدل** (caṣedə́l) مص. ل. ښویېدل، څکېدل، څخېدل، راښکل کېدل.

**څک** (cak) ص. نر.م. ۱) نیغ؛ ۲) اواز ته غوږونه بوڅول؛ غوږونه څکول؛ ۳) مضبوط، محکم؛ ٤) نر.م. ناڅاپي تېز درد.

**څکا** (caká) ښځ.م. ۱) څښنه، څکنه؛ ۲) د څاڅکو د راڅڅېدو اواز.

**څکاروا** (cakarwā́) ص. نب. ۱) اروا وړی، بد اروا، وړسترګی، چوس مار، ستروړی.

**څکالکی** (cakā́lkay) نر.م. شوپرک، ښاپېرک، ماښام چکالی، څکالی.

**څکالی** (cakā́lay) نر.م. ۱) شوپرک، ماښام چکالی؛ ۱) د چرم زره ټوټه؛ ۳) څادر، چکالی؛ ٤) پشتکی، په تناره پورې نښتې د ډوډۍ یوه برخه؛ ٥) پنبه، مالوچ.

**څکاول** (cakāwə́l) مص. مت. څکول، کشول، راکښل؛ راښکل، راکشول، څښول.

**څکاوو** (cakāwū́) ص. نر.م. کشوونکی، څکوونکی، جذبوونکی.

**څکپاڼی** (cakpā́ṇay) نر.م. د تېږ د پاڼو سابه.

**څکښو** (caksū́) نر.م. چاکښو، چکښو.

**څکل**[111] (ckəl) مص. مت. چیښل، څښل، چیکل.

**ښکل**[2] (cakə́l) مص. مت. ۱) ښکـه کـول، د شي خوند معلومول؛ ۲) نر.م. ۱) کم واټن، لږه لاره؛ ۲) د لارې یوه ټوټه؛ ۳) د ځمکې یوه برخه.

**ښکل پکل** (cakalpakál) ص. نر.م. چکل پکل، اوبلنه واوره.

**ښکنه**[1] (ckə́na) ښځ.م. چیښنه، ښښنه، څښنه، د اوبو یا نورو مایعاتو غوړپونه.

**ښکنه**[2] (cakə́na) ښځ.م. خوند اخیستنه، خوند یا مزه معلومونه، خوند کتنه.

**ښکو** (cakó) نر.م. یو ډول ښایسته سکوی، یو ډول کښېده، یو راز خامکدوزي ده.

**ښکوړی** (ckóṛay) نـر.م. ۱) چکـوړی، وړوکی سخوندر؛ ۲) خوسي ته د اوبو د ورکولو یا ځان ته راغوښتلو اواز.

**ښکوړې** (ckóṛe) نر.م. د خوسي د شړلو اواز.

**ښکول** (cakawə́l) مص. مت. ۱) راکښل، کـړول، کشول؛ ۲) د چلم لوګي راکښل، ساه راکښـل؛ ۳) نر.م. سبوس، بورکی؛ ٤) مص. مـت. ښه کم ښیز ورکول، لږ شي ورکول.

**ښکولی** (ckúlay) نر.م ۱) دخرمنې ټوټه؛ ۲) د زاړه بوټ یا پنې ټوټه؛ ۳) ښکی، د ډوډۍ ککوړی، د ډوډۍ ټیکلی.

**ښکونډاره** (ckunḍā́ra) ښځ.م. (ج. ښکونډارې) نوکاره، نکاره، سکونډاره، سکونډکه.

**ښکونډل** (ckunḍə́l) مص. مت. و.ګ. سکونډل.

**ښکونکی**[1] (cakū́nkay) فا. نر.م. خـوند کتونکی ذایقه معلومونکی.

**ښکونکی**[2] (ckū́nkay) فـا. نـر.م. چښـونکی، چکونکی؛ دچلم، سګرټ لوګي راښکونکی.

**ښکه** (cáka) ښځ.م. (ج. ښکې) ۱) خوند، نوه، ژبه وروړنه؛ ۲) لږ خواره؛ ۳) یو ډول ناروغي ده.

**ښکی** (ckay) نر.م. (ج. ښکي) ۱) ټوکری، ښکری ۲) د منډتې زړی؛ ۳) ص. نر.م. راښکـونکی، جذبوونکی؛ ٤) نر.م. جالکی، ډالی، د ډوډۍ د ساتلو کور.

**ښکې** (cə́ke) ښځ.م. ۱) ښره، د خوسي د شړلو اواز؛ ۲) د «ښه کړې» لنډون.

**ښکېدل** (cakedə́l) مص. ل. ۱) په لږ شي قانع کېدل په لږ ښیز صبرېدل؛ ۲) ښښېدل؛ ۳) ښښېدل، په کوناټو تلل، په ناسته تلل؛ ۲) خوځېدل، راښکل کېدل؛ ۳) چلم ښکول کېدل، چلم کښل کېدل.

**ښکېړل** (cakeṛál) مص. مت. ایسارول، ګیرول.

**ښکېړلی** (cakeṛə́lay) مف. نر.م. بندي، ایسار شوی، په دام کې نښتی، په دام کې ګیر.

**ښکېندن** (cakedán) نر.م. خوند، ښکه، ښکنه، ذایقه، مزه، خوند معلومونه.

**ښګ** (cag) نر.م. ګوره.

**ښګک** (cagák) نر.م. غربی، سیاګک، سګک، د ښپلۍ یا کمربند غربی.

**ښګل** (cagál) نر.م. و.ګ. ښوګل.

**ښلاښل** (clācál) ق. ۱) هغه درنګ، ځای په ځای، له ټکه، په هماغه ساعت؛ ۲) سپږ، تباه.

**ښلاړی** (calāṛáy) ا. ښلور لاری، چوک، ښولاری.

**ښلګه** (calagá) ښځ.م. د اوبو داره، د اوبو پشکه.

**ښلوراړخی** (calorarxáy) ص. نر.م. ښلورمخی، د ښلورو پلونو، د ښلورو خواوو.

**ښلور برغه** (calorbrága) ص. نب. ښلور قانه، ښلورغبرګه، ښلوروله، ښلور خپله.

**ښلوربل** (calorbál) ا. و.ګ.: ښلوربول.

**ښلوربول** (calorból) ص. نر.م. ښاروی، چارپای.

**ښلورڅنډی** (calorcanḍáy) ص. نـر.م. ښلور اړخی، ښلورګوټی، ښلور کونجی.

**څلورخانیز** (calorxānīz) ص. نر.م. چارخانه.

**څلور خواوې** (calorxwāwe) ښځ.ج. څلور اړخه، څلور طرفه، څلور لوري، څلور پلوونه.

**څلورسترګی** (calorstárgay) ص. نر.م. ۱) بد سترګی، بداخلاقه؛ ۲) بې شرمه، بې حیا.

**څلورغاښی** (calorğāṣay) ص. نرم. ۱) څلور غښی، هغه څاروی چې په عمر پنځه کلن وي؛ ۲) ښاخی، خاخی، سکو، چارښاخه.

**څلور ګوتي** (calorgwatí) ص. نب. پ. ک. د چړې، خنجر او توري (تېغ) په تپ کې د زخم معیار دی یې د څلور ګوتو په اندازه وي. که تر دغه حد لږ وي لږ پور او که زیات وي په نرخ کې ډېر پور ورته ټاکل کېږي.

**څلورګوټی** (calorgóṭay) ص. نر.م. د څلورو ګوټونو، څلورګوټېز، مربع، مستطیل، معین.

**څلورګی** (calorgáy) ښځ.م. د میرو لوبه، ګوټي، ګاټي، د ماشومانو یو ډول لوبه ده.

**څلورلارې** (calorlāre) ښځ.م ۱) چوک، چارراهي چارسو؛ ۲) متردد، دوه زړه توب.

**څلورورېزی** (calorwrézay) ص. نر.م. نوی ځوان، هغه هلک چې نوې یې برېتونه راغلي وي.

**څلوریاران** (caloryārān) ا. و ګ.: چاریار.

**څلوریزه** (caloríza) ښځ.م. ۱) څلور یځه، رباعي، هغه دوه بیتونه دي چې د لومړي بیت دوې مسرۍ د دوهم بیت له دوهمې مسرۍ سره په قافیه کې یو شي وي.

**څلوېښتمه** (calwesṭáma) ص. ښځ. م. د مړي څلوېښت ورځې تېرېدل، د ماشوم د زېږېدو څلوېښتمه ورځ.

**څلوېښتې** (calwestí) ښځ.م. په مړي پسې د څلوېښتمې ورځې د پوره کېدو خیرات.

**څلوېښتی** (calwesṭáy) نر.م. د څلوېښتو سرو مشر، په څلوېښتو سړو کې انتخاب شوی سړی.

**څلوېښت یکه** (calwestyáka) ص. نب. چلیک، څلوېښتمه، د څلوېښتو یوه برخه.

**څله**[1] (cá!a) ق. ۱) ولې، څه لپاره، څه لـه، څه ته؛ ۲) یو له بله، سره؛ ۳) ښځ.م. یقین، باور؛ ٤) دزړه تاو؛ ٥) سوده، سبیه؛ ۳) هیله، آرزو؛ ٤) مینه، لورینه، پېرزوینه.

**څله**[2] (c(i,a)lá) ښځ.م. څېله، څیله، چله، د ژمي د موسم هغه ۶۰ ورځې چې سخته یخني وي.

**څله مست** (cilamást) ص. نر.م. هغه اوښ چې د ژمي په څله کې مستېږي.

**څله وال** (cilawāl) ص. نر.م. ج. هغه څوک چې څلوېښت شپې او ورځې په پټ او ګوښې ځای کې ریاضت او عبادت کوي.

**څلی** (cálay) نر.م. ۱) د قبر شنخته؛ ۲) د تیږو ډیری؛ ۳) نښه، نښکه؛ ٤) منار، یادګار؛ پ. ک. په قبیلوي تعاملاتو کې د هغې تادیې غبر ګېدو ته وایي چې لومړی یې د (ساز) په نامه اخیستي وي او وروسته دغه مسترد کړي او د (وار) په نامه خپل غچ ته چمتو شي؛ ٤) چلی، چله، په ګوته کې د اچولو کړۍ.

**څلی** (caláy) ښځ.م. د غوږو منډرۍ، د غوږو لښتي.

**څلی څولی** (calaycūlay) نر.م. ۱) لوړې ژورې، څلې څولې؛ ۲) د لارې توښه.

**څلېر** (cler) نر.م. د بېدیا تالاو، د مېږې اړ د ښتې ډنډ، د سارا حوض، جوړ، ترېلی.

**څلی ړنګول** (calayrangawál) پ. ک. که دوو دښمنو خواوو تر منځ جوړه وشي چې په پخوا کې دواړو خواوو یو په بل کې مړي سره کړي وي داسې جوړې ته څلی ړنګول وایي.

**څلېښ** (cleṣ) نر.م. څلېښت، سرېښ، سرېښ.

**څلېښم** (cleṣə́m) نر.م. سرېښم، د کمانګری سرېښ چې ترکاڼان لرګي پرې سرېښوي.

**څم** (cam) ص.نر.م.ج. سم، سيخ، سيده، برابر.

**څمڅ** (cmac) ښځ.م. غار، سمڅ، سمڅه، ښمڅ.

**څمڅرېکی** (camcarékay) نر.م. ۱) شرموښکی، خرمښکی، چرمښکی؛ ۲) کربوړی.

**څمڅک** (camcák) نر.م. د غټو دانو ناروغي ده.

**څمڅکی** (camackáy) نر.م. ۱) يو ډول چينجی دی چې غټې سر لري او وروسته تر څه مودې په چونګښې تبديليږي؛ ۲) درغوړ کول، د ښاريو يو ډول ناروغي ده.

**څمڅلکی** (camcalakáy) نر.م. ستن، بابښکی، کمبلی، يو ډول الوتونکې خزنده ده.

**څمڅمار** (camcamā́r) نر.م. چمچمار، کوچه مار، يو ډول ورکوتی، نری منګور دی.

**څمڅه** (camáca) ښځ.م. د څمکې پرمخ چاود.

**څمڅۍ** (camcə́y) ښځ.م. ۱) چمچه، څمڅه، د لرګي کاچوغه؛ ۲) لويه کاچړغه.

**څمڅېکی** (camcekáy) نر.م. کوڅوبی، کسوبی، ميانګی، لکۍ، د شيري په څېر د ماشومانو يو ډول ناروغي ده.

**څمړ** (camáṛ) نر.م. څمنګی، ورينکی، کونډری، هغه توکر چې پېړې ورباندې ږدي.

**څمغېلی** (camğélay) نر.م. ۱) وړه او زړه خيمه، ۲) څېره، د مرغانو شکنو او نورو څناورو د داړولو لپاره په پټې کې درول شوی شی.

**څمغېلي څمغېلي** (camğelícamğelí) ص.نب. وتره څمکه، وچه او لنده څمکه.

**څملاستل** (camlā́stəl) مص.ل. ۱) ويده کېدل، بيدېدل؛ ۲) غځېدل؛ ۳) مغلوبېدل.

**څملول** (camlawə́l) مص.مت. ۱) پرزول، راغوزارول؛ ۲) ويده کول؛ ۳) مغلوبول.

**څمنګی** (camangáy) نر.م. ۱) رنګ شوي او پخه شوي څرمن؛ ۲) هغه دستر خوان چې پېړې ورباندې جوړېږي؛ ۳) د څرمنې توټه.

**څموڅی** (camū́cay) ص.نر.م. پک، ګنجی، کل، بې وېښته سر.

**څمول** (camól) ص. ۱) غمجن، غمځپلی؛ ۲) ټپي، پرهار ژلی، زخمي، پياوړژلی.

**څمولول** (camolawə́l) مص.مت. ۱) غمجنول، غمګينول؛ ۲) ټپي کول، زخمي کول.

**څمولېدل** (camoledə́l) مص.ل. ۱) څمول کېدل، غمجن کېدل؛ ۲) ټپي کېدل، زخمي کېدل.

**څميار** (camyā́r) نر.م. و.ګ. چميار.

**څنار** (canā́r) نر.م. و.ګ. چنار.

**څنډ** (canḍ) نر.م. ۱) ډکه، ديکه، ړج؛ ۲) ژۍ، څنډه، غاړه، کناره؛ ۳) د اسمان څنډه (افق).

**څنډل** (canḍə́l) مص.مت ۱) ټکول، سنول، څبول، له ونې څخه په ښورولو سره مېوه راتويول؛ ۲) له ټغر يا قالينې څخه د وړې ټک وهل؛ ۳) سپکول، سپورې ستغې وهل؛ ٤) نر.م. د غره پر سر اوار ځای.

**څنډلتوب** (canḍəltób) نر.م. ۱) څنډلتيا، ړچېدنه، ښورېدنه؛ ۲) غريبي، تش لاسي.

**څنډلی** (canḍə́lay) نر.م. ۱) ورکوټی څنډل، د غره په سر ورکوټی اوار ځای؛ ۲) کنډواله، کنډر ۳) ورکوټی دېوال.

**څنډول**[1] (canḍúl) نر.م. څنډلی، د ډېوډۍ ګوټ، د دهليز څنډه، د کوشکن کونج.

**څنډول**[2] (canḍawə́l) مص.مت. ۱) سنول، ښورول، څبول؛ ۲) ټک وهل، دوړه ايستل.

**څنډون** (canḍún) نر.م. شفق، د آسمان د غاړو سوروالی چې سهار او ماښام ښکاري.

**څنډوهل** (canḍwahə́l) مص. مت. ۱) څپول، څنډل، تک وهل؛ ۲) د تغر، کمبلې، قالینې څخه دوړه او خاوره ایستل.

**څنډه** (canḍá) ښځ.م. (ج. څنډې) ژۍ، غاړه، څنډ، ډډه، اړخ، کناره، مورګه.

**څنډېدل** (canḍedə́l) مص.ل. څپېدل، سنډېدل، رچېدل، ښورېدل.

**څنډيز** (canḍíz) ص. د څنډ (افق) اړوند، افقي.

**څنغوړی** (canğwáṛay) نر.م. د غوړ پستکی.

**څنک** (canák) نر.م. ښانک، سک، پنکی.

**څنکوپ** (cankóp) نر.م. سر په څنکه، سنګوپ، سر په څړی، سرلاندې پښې پورته.

**څنګ** (cang) نر.م. پلو، ډډه، طرف، خوا، اړخ.

**څنګ پر څنګ** (cangparcáng) ق. څنګ په څنګ بغل پر بغل، ډډه په ډډه، غاړه په غاړه.

**څنګ کول** (cangkawə́l) مص. مت. لېرې کول، ګوښه کول، اجتناب کول، ډډه کول.

**څنګړی** (cangṛáy) ښځ.م. څنګلی، یوه غبږ وانښه، یو څنګ وانښه، یوه کوده وانښه.

**څنګزن** (cangzán) ص. نر.م. ۱) په ډډه، په یوه طرف کوږ؛ ۲) ګوښه والی، ځانته والی.

**څنګزنی** (cangzánay) ص. څرمه، څېرمه ییز، په ترخ کې راتلونکی، ضمني.

**څنګل** (cangə́l) ښځ.م. لبچ، څنګله، د څنګلې سر.

**څنګ وانښی** (cangwáṣay) نر.م. سر وېړدی، بالښت، غېته تکیه، پشتی.

**څنګوښی** (canguṣáy) نر.م. د توپک بند.

**څنګ وېړدی** (cangweẓdáy) نر.م. ۱) سر وېړدی، بالښت، غېته تکیه؛ ۲) د توپک بند.

**څنګه** (cánga) ص.نب. ۱) څه رنګه، څه شان، څه ډول، څه قسم، څه رنګه؛ ۲) خپور، خوروور، شینډلی، تیت، غوړېدلی.

**څنګی** (cangáy) ښځ.م. رنځی، سنګ چین، د کانو دېوال، د کاریز چاپېره.

**څنګی** (cangáy) نر.م. وندر، رسی، پړی، غېل شوی پړی، پر اوږده او غټه رسۍ باندې مېږې، غواوې په یوه کتار ورباندې تړل.

**څنل** (canə́l) مص. مت. ۱) څنډل، سنول، سورول، رچول، ښورول، خوځول؛ ۲) د کوتې بام رنګول؛ ۳) د څادر یا بل شي څنډل.

**څنی** (canə́y) ښځ.م. ۱) سنی، انځی؛ ۲) ټیکری هغه وربښمین ټیکری چې توري او سرې پټې لري.

**څڼکه** (caṇáka) ښځ.م. ۱) د څڼې تصغیر، چغشکې (د ماشومانو څڼې)؛ ۲) د ککرۍ پاسنۍ برخه؛ ۳) د بوتل سرپوښ؛ ٤) د جوارو څڼې، د جوارو د وړې وېښته.

**څڼه** (cáṇa) ښځ.م. ۱) زلفې، د اتڼ لپاره پرېښوول شوې اوږده وېښتان؛ ۲) ټېک؛ ۳) د ښځو د سر اوږده وېښتان یا کوڅۍ.

**څڼۍ** (caṇay) ښځ.م. ۱) څړۍ؛ ۲) د سیکانو د سر تړلي وېښته.

**څڼۍ کوکو** (caṇaykūkū́) نر.م. سنبل، یو ګل دی چې شاعران زلفې ورسره تشبیه کوي.

**څڼیکه** (caṇíka) ښځ.م. پیکی، پیوه، څڼکه، د تورو تارونو او زر تارو څخه غښتل شرې څڼکه چې ښځې یې د وېښتانو د ګنډه کولو لپاره استعمالوي.

**څو** (co) ص. نب. ۱) څونه، څومره؛ ۲) تر څو، کوم وخت پورې، تر هغه چې؛ ۳) څنګه، [illegible] رنګه.

**څو** (caw) نـر.م. ۱) څـوی، څـاو، پټ کـبهاستنه، څارنه، مراقبت؛ ۲) وګ. څاو، پڅوني.

**څوار** (cwār) نر.م. صبر، زغم، استقامت.

**څواړخېز** (coaṛxíz) ص. نر.م. ج. د څـو خـواوو خاوند، څو خواوې لرونکی، څو جانبه.

**څوب** (cwab) نر.م ۱) لېوالتیا، خواهش، غوښتنه، آرزو، شوق، تمایل؛ ۲) درد، سوی، خوږ.

**څوباړی** (cobā́ṛay) نر.م. (ج. څوباړي) د کالیـو د مینځلو او پرېوللو دبی.

**څوبمن** (cwabmán) ص. شوقمن، لېوال، د څوب خاوند.

**څوبند** (cawbánd) ص. هڅند، هڅاند، شوقي.

**څوپ** (cop) نر.م. وګ. څپ[1].

**څوپره** (coprá) ښځ.م. تاو راتاو شوی تار، ګـډوډ شوی تار، کنهیل شوی سپنسی.

**څوترڅو** (cotarcó) ق. ترڅـو پورې، ترڅـومره پورې، تر څه وخته پورې.

**څوټ** (coṭ) نر.م. (ج. څـوټونه) شبخون، د شـپې حمله یا چپاو، ناتار، تاړاک.

**څوټک** (coṭák) نر.م. سوټک، څټک، څتک.

**څوټي سراب** (coṭaysarā́b) نر.م. معتبر، مخور د اعتبار سړی، سپین روبی.

**څوچنده** (cocánda) ق. څو واره، څو ځله، څو برابره، څو ګرایه، ډېر زیات.

**څوځی** (cojáy) نـر.م. سـوزاک، یو ډول سـاري ناروغي ده چې د مقاربت له لیارې سرایت کوي.

**څوچې** (cóce) ق. ترڅو، څو پورې، تر هغـه.

**څوڅ** (cuc) نر.م. ۱) ډولفین، یو ډول لوی مـاهي، دریابي خوګ؛ ۲) ص.نر.م. اروا ورې، توسن.

**څوڅکندی** (cuckandáy) ص: نر.م. څـسن، کوځه په کوځه ګرځېدونکی، چوسکن، کوځه ډب.

**څوڅلن** (cuclán) ص.نر.م. کنجوس، لاسترګی.

**څوڅن** (cucán) ص.نر.م. ۱) څوڅکندی، څوڅلن؛ ۲) سپېره، خسیس، چوس.

**څوڅه** (cū́ca) نر.م. دریابي سوډر، دریابي خوګ.

**څوڅینک** (cucinák) نر.م. ۱) چرچرک؛ ۲) یو ډول مرغی.

**څوخی** (cū́xay) نـر.م. ۱) د کـوزې څـڅکوری، چوښکه، سوخـی؛ ۲) چـولکی، د کـوچنیانو تناسلي آله.

**څوده** (codá) ښځ.م. سوړه، سمڅ، په غره کې د درمو لپاره جوړه شوې سمڅ، لغم، ګاره.

**څورب** (corb) ص. نـر.م. ۱) چاغ، مـزی، غوړ، شلند؛ ۲) تکړه، تازه، تاند، غوړین.

**څورب توب** (corbtób) نر.م. چاغښت، څوربوالی، چاغوالی، غوړوالی.

**څورکه** (corká) ښځ.م. پلو، اړخ، خوا، طرف.

**څورګه** (corgá) ښځ.م. ۱) مېبره، دښت، بیابان؛ ۲) اړخ، ډډه؛ ۳) لرې وطن، نا اشنا وطن.

**څورله** (corlá) ښځ.م. خنزیر، سوور، سرکوزی.

**څورلی** (corláy) نـر.م. څـولی، څوولی، سکنه، د ترکاڼۍ یوه آله ده.

**څورلي** (cwarlí) ښځ.م. سپرلي، سورلي.

**څورلېځی** (cūrlejáy) نر.م. محور، لټ.

**څورنګ** (cawráng) ص. نر.م. ۱) مبتلی، لتاړ، پایمال؛ ۲) ژوبل، په وینو لړلی؛ ۳) مات ګوډ، شل شوټ.

**څورنګ** (coráng) ص.نر.م. څرنګه، رنګارنګه، څرنګه لرونکی.

**څورنګتوب** (cawrangtób) نر.م. ۱) څورنګتیا، څورنګوالی، ژوبلېدنه؛ ۲) وهل کېدنه، ټکول کېدنه، مېښنه، موښنه، مړنه.

**څورنګول** (cawrangawə́l) مص. مت. ۱) موښل، منښل، سولول، وهل، ټکول؛ ۲) زخمي کول، ژوبلول؛ ۳) ماتول، ګوډول، خچ پچ کول.

**څورنګي** (cawrangí) ښځ.م. ۱) موښل کېدنه، وهل کېدنه؛ ۲) ژوبلېدنه؛ ۳) ګوډېدنه، خچ پچ کېدنه؛ ٤) د پسو او وزو د يوه مرض نوم.

**څورنګېدل** (cawrangedə́l) مص.ل. ۱) موښل کېدل، منښل کېدل، ټکول کېدل، وهل کېدل؛ ۲) ژوبلېدل؛ ۳) خچ پچ کېدل، ګوډېدل.

**څوروی** (curwáy) نر.م. پټونی، کمينګاه، باره، ګوره، د ښکار لپاره د پټېدو ځای، پټګنی.

**څوری**[1] (curáy) نر.م. تېره کاڼی چې ښکاريان خپل ښکار پرې حلالوي.

**څوری**[2] (cwaráy) نر.م. ۱) دسفرخرڅی، د لارې خرڅ، د لارې توښه؛ ۲) د شپانه ډوډۍ؛ ۳) پ. ک. د لښکر کشۍ په وخت هغه ګډه ډوډۍ چې په شلاونډ تيارېږي.

**څوړ**[1] (cawáṛ) نر.م. ۱) پېڅول، د کيږدۍ په مخکې پرده؛ ۲) زړې کمبلې يا تغر چې د خره په کوناتو يې اچوي.

**څوړ**[2] (coṛ) نر.م. د نوم يا نوشاوخوا نرۍ غوښه.

**څوړ**[3] (cūṛ) ص. نر.م.ج. ۱) څوړند، ښکته؛ ۲) پياده، پلی، لاندې؛ ۳) نسکور، پرمخ؛ ٤) کوړ ووړ؛ ٥) باسي ډوډۍ؛ ٦) وچ کلک؛ ۷) ننوتلی؛ ۸) خړ، ملامت.

**څوړغوږ** (curǧwáz) ص. نر.م. ۱) شرمنده، خجل؛ ۲) پړ، ملامت.

**څوړغويی** (curǧwayáy) نر.م. چپی غويی، هغه غويی چې ښکر يې شټ ته کاږه وي.

**څوړمنی** (cormə́nay) نر.م. څړمنی، پسرلی.

**څوړنګ** (cawṛáng) نر.م. د وجود يوه برخه.

**څوړنګه** (coṛanga) ښځ.م. نسوی راتوکېدلی بوټی يا ونه.

**څوړوالی** (curwā́lay) نر.م ۱) څوړتيا، څوړونه، څوړتوب؛ ۲) خړوالی؛ ۳) ښکته والی.

**څوړول** (curawə́l) مص. مت. ۱) کښته کول، ډوبول، منډل، ننه باسل، څېړول.

**څوړه** (curá) ښځ.م. څوری، يو ډول خړ رنګې مرغۍ ده چې اوږده لکۍ لري.

**څوړی** (curáy) نر.م. و ګ. څوړغويی.

**څوړېدل** (curedál) مص.ل. ۱) کښته کېدل، ډوبېدل؛ ۲) چوړېدل، کوزېدل.

**څوړې سترګې** (curestárge) ښځ.م. کوزې سترګې، ټيټې سترګې.

**څوړين** (cawṛín) نر.م. د څرمنې يا د زاړه ژې يوه ټوټه چې ښځې جامې پرې مينځي.

**څوز** (cwaz) نر.م. رس، عرق، جوهر، څوښه.

**څوزی** (cuzáy) نر.م. ۱) د لوخې په څېر بوټی دی ۲) چرګوړې، د چرګې بچی.

**څوژبی** (cožábay) ص. په څو يا ډېرو ژبو پوهېدونکی.

**څوژبي** (cožabí) ا. ډېرژبي، څوژبيوالی.

**څوژبيز** (cožabíz) ص. څوژبی (فرهنګ، ويبپانګه).

**څوس** (cus) نر.م. توس، بوی ښکل، بوی کښل، له بوی له مخې څه پيدا کول.

**څوسن** (cusán) ص. نر.م. ۱) توسن، بوی کښن، سرمه کش؛ ۲) وړ سترګی؛ ۳) هغه څوک چې بې بلنې خيرات ته ځي.

**څوسېدل** (cusedál) مص.ل. توسېدل، چوسېدل، بويېدل، بوی وهل، بوی ښکل.

**څوسيس** (cusís) ص. نر.م. څارونکی، جاسوس.

**څوښتی** (cwaṣtáy) نـر.م. ۱) سخوښتی، هغه لرګی چې د تنستې سنې ورباندې پېچلې کېږي ۲) وښکلی وڅوستی؛ ۳) چوښکه، څوښکوړی

**څوښکوړی** (cuskūŕay) نـر.م. څوښکوړی، څوښکه، څوښکی، چوښکی، چوښکوړی.

**څوښه** (coṣá) ښځ.م. څرخه، هغه آلـه (لرګی) چې وړې وریاندې تار کېږي.

**څوښی** (cuṣáy) نـر.م. ۱) چوستی، چـوښکه، څوښکوړی؛ ۲) د وړو هلکانو تناسلي آلت.

**څوک**[۱] (cok) ض. نب. استـفهامي ضمیـر دی چې د پوښتنې په وخت کې استعمالیږي.

**څوک** (cūk) نر.م. سوک.

**څوکری** (cukráy) نر.م. د پښې (رواش) ډنډر.

**څوکرېیل** (cukreyā́l) مص. مـت. میـده میـده کول، رنجې رنجې کول، توکل، کوفته کول.

**څوکړ** (cukā́r) ص. نر.م.ج. کـوسه، چـوکړ، هغه سړی چې ږیره یې رنګړې وي.

**څوکل** (cukā́l) مص.مت. میده کول، توکل، تکول قیمه کول، کیمه کول، کوفته کول.

**څوکلن** (coklan) ص. نر.م. د څوکالو، دڅوکلو.

**څوکه** (cū́ka) ښځ.م. د غره تېره څوکه، د غره سر، د هر شي تېره څوکه.

**څوکۍ**[۱] (cawkáy) ښځ.م. ۱) چـوکۍ، کرسي؛ ۲) پیره، پهره، تانه؛ ۳) سنګر، مورچل.

**څوکۍ**[۲] (cukáy) ښـځ.م. ۱) یو ډول بـوټـی دی؛ ۲) څکی، وړه ډوډۍ؛ ۳) کولچه ٤) دانګـورو د تاک سر چې د نیم متر هومره پرې شوی وي.

**څوکی**[۱] (cukáy) نـر.م. خـورجی، د کوچیانو یو ډول خورجین.

**څوکی**[۲] (cawkáy) ص.نر.م. پیره دار، چوکیدار، ساتونکی، محافظ، څاروکی.

**څوکیدار** (cawkidā́r) نر.م. پیره دار، چوکیدار، ساتونکی، څارونکی، محافظ.

**څوکۍ مینی** (cawkəymínay) ص. څـوکۍ مین، څوکۍ پال.

**څوکیوال** (cawkiwā́l) ص. څـوکۍ (سیمه) ته اړونده، څوکۍ کوونکی، پهره وال، څوکیدار.

**څوکیوالي** (cawkiwālí) څـوکیداري، پهره داري.

**څوګرایه** (cogrā́ya) ص. و ګ.: څوچنده.

**څوګل** (cawgál) نر.م. هغه سي (سبوس) یا توپاله او د حبوبـاتو پوسـتکي چې د پخېدو په وخت کې د دېګي سر ته راخېژي.

**څوګوتیز** (cogwatíz) ص. څوکونجیز، څوګوټی، څواړخیز.

**څوګیر** (cawgír) ص. نـر.م. په څـوکۍ ناست، د ښکار په طمعه ناست ښکاري، څارو، منتظر.

**څوګیري** (cawgirí) ا. څارووالی، فرصت طلبي.

**څول** (cwal) ص.نر.م. ۱) میده میده، توټه توټه؛ ۲) چاود چاود، درز درز.

**څولاغ** (culā́ğ) نـر.م. پته، څـرک، درک، نښه، احوال، ادرس، څوڅک.

**څولند** (cūlánd) ص. نـر.م. ۱) سـولند، حریص، وږ، سترګی؛ ۲) چوسک، چوسن، چوس.

**څوله** (cola) ص.ښځ.م. څوله، ګند، ګنځ، له ډېرو پیوندونو څخه جوړ شوی اوږد کمیس.

**څولۍ** (colə́y) ښځ.م. څـولی، څـوولی، سکنه، د ترکانۍ یوه آله ده.

**څولي** (colí) نر.م.ج. بنګړی.

**څولیار** (culyā́r) ښځ.م. د غره تنګه لاره، څرلار، په غره کې د پلیو لپاره نرۍ لاره.

**څومره** (cūmra) ص.نب. څونه، څـونې، څوندې، څونبره، څومبره، په کومه اندازه.

**څومره والی** (cūmrawā́lay) ا. څومره توب، اندازه، مقدار، کمیت.

**څومره ییز** (cūmrayī́z) ص. کمي، څومره ته اړوند.

**څونټی** (cunṭáy) ښځ.م. کاچوغه، کاشوغه، قاشوغه، چمچه، سیپی.

**څونټی** (unṭáy) ص.نر.م. شوټ لاس، پرې شوی لاس..

**څونڅی** (cuncáy) ښځ.م. کاچوغه، قاشوقه، څمڅه، چمچه، کاشوغه.

**څوند** (cawánd) نر.م. سرګردانه، نارامه، ناکراره، بېتابه، لالهانده.

**څونډک** (cunḍak) نر.م. څونډی، زونډی، ځونډی زومبک، ځومبک، بوډی.

**څونډکرکی** (cundakárkay) نر.م. دڅونډي تصغیر

**څونډی** (cunḍáy) نر.م. ۱) ځونډی؛ ۲) د سر مخکني وېښتان.

**څونسو** (consáw) عد. ۴۰۰، څلور سوه.

**څونګری** (cungaráy) نر.م. کوک، هغه پتیره ډوډۍ چې د ماشومانو د ناروغۍ په وخت کې د خیرات په ډول ورکول کېږي.

**څونه څاره** (cunacā́ra) ق. خبره ځنډونه، څه خبره ټالونه، چون چرا.

**څونه والی** (cunawā́lay) ص.نر.م. څومره والی، څوندي توب، د یوه شي شمېر او اندازه.

**څونی** (cunáy) نر.م. پتایی، پوک، دګنیو توفاله، د ګنې ځڅې چې اوبه ترې وتلې وي.

**څونی** (cunáy) ښځ.م. ۱) چمبر، چاپداره خمتا؛ ۲) بوچۍ وزه، بوچه بزه؛ ۳) هغه تور ټیکری چې په سره ګل کې رنګ شوی وي.

**څونکه** (cuṇáka) ښځ.م. ۱) څنکه، دڅنې تصغیر ۲) کلغی، خول، تاج، چرخولی.

**څونول** (cunawә́l) مص. مت. و ګ. سونول.

**څونه** (cuṇa) ښځ.م. څنه.

**څوني** (cuṇí) ښځ.م. څني، څنه، کوڅی، څونکه.

**څونېور** (cuṇewár) ص.نـر.م. ج. ۱) څـونور، څنیور، څنور؛ ۲) مج. پک، ګنجی.

**څونیورناوې** (cuṇewarnā́we) ښځ.م.ص ۱) دڅنور سرې ناوې؛ ۲) د لېوره د ښځې لقب، د مېږه د ورور د ښځې لقب.

**څوول** (cawawә́l) مص. مت. ۱) ځـورول، دردول؛ ۲) نر.م. په زړه کې اراده کول، څه خبره فرضول

**څوولسي** (cowolasí) ص. ګنولسي، څوملیتي.

**څووم** (cowә́m) ص.نر.م. څویم، عددي صفت.

**څووه** (cuwá) ښځ.م. دیو ډول خوشبویه بوټي نوم.

**څوه** (cwa) ښځ.م. سوه، کـورمه، د آس، خـره یا د قچر سوم (سوی).

**څوهټ** (cuhát) ص.نر.م. عبث، بې کاره، بې ښې.

**څوهره** (cuhrá) ښځ.م. چوره، فتق، د نس د نامه د پاسه هغه غوښه چې څیرې وي.

**څوهم** (cohә́m) ص. نر.م. و ګ. څووم.

**څوهنده** (cohә́ndә) ص. نب. و ګ. څومره.

**څوی**[1] (cawáy) نر.م. په ځاو کې دکبناستو ځای، خزه، د ښکار لپاره د پټ کېناستلو ځای.

**څوی**[2] (cway) نر.م. سـوی، سوزش، ځـانګې، سونه، سوخت، خوږ.

**څوېدل** (cawedә́l) مص.ل. سوېدل، ځانګې کول، دردېدل، دړدېدل، خوږېدل، څرېکي کول.

**څوېره** (cwerá) ښځ.م. و ګ. څوری.

**څویم** (coyә́m) ص.نر.م. و ګ. څووم.

**څه** (ca) ض. ۱) استفهامي ضمیر دی – څه کـوې؟ څه شی غواړې؛ ۲) اد. ته، ورنه، څخه.

**څه ته** (cata) څه لپاره، څنګه، ولې، څله، چشته.

**څه د پاره** (cadapā́ra) ق. څه لپاره، ولې، څه له، څنګه، څه شي لپاره، چیشته.

**څه ډول** (caḍáwəl) ص. نب. څه راز، څه قسم، څرنګه، په څه شان، څنګه، کم رقم.

**څه نه څه** (cánaca) ق. لږ و ډېر، کم و زیات.

**څه وڅه** (cáwuca) ض. ۱) د کنځا د اصلي کلیمو پرځای استعمالېږي؛ ۲) د انسان د شرم ځایونه

**څه وخت** (cáwaxt) ق. کله، کوم وخت.

**څې** (ce) ښځ.م. د (څ) توری تلفظ.

**څیپیاکه** (cipyā́ka) ښځ.م. زګند مالګه، هغه مالګه چې په مصنوعي ډول جوړه شوې وي.

**څېته** (cetá) ښځ.م. د تورې پڅ اړخ، د تورې شا.

**څېټۍ** (ceṭə́y) ښځ.م. سومبه، چټۍ، د تبرګي یا تبر پڅ اړخ.

**څیخ** (cix) ص.نر.م. ۱) موخه، په زور ډک شوی، سوخلی، منډلی، کېمنډلی؛ ۲) سم، مستقیم

**څیخل** (cixə́l) مص.مت. کېمنډل، سیخل، چیخل، ډکول، سوخول، په زوره ډکول.

**څېر** (cer) اد. غونډې، شان، رنګ، قسم، ډول.

**څیرخولی** (cirxwā́lay) نر.م. توربانجان.

**څیرسترګی** (cirstə́rgay) ص. نر.م. ۱) بې حیا، بې شرمه؛ ۲) بداخلاقه، فاسد.

**څیرګۍ** (cirgā́y) ښځ.م. کوړکی، کوړۍ، څیرګی، څیرکی، کوچنۍ پتۍ، وړه پتۍ.

**څیرل** (cirə́l) مص. مت. بڅه کول، دوه ځایه کول، شلول، چاغل.

**څیرله** (cirā́la) اا. ژبنی عبارت، فقره، ټوټه، پرزه.

**څېرلی** (cerláy) نر.م. سپرلی، چیلی، دوزې بچی.

**څېرمه** (cérma) ص.نب. ۱) څنګ ته، څواته، اړخ ته؛ ۲) نژدې، متصل؛ ۳) تړول، ګرسره؛ ٤) ص. ښځ.م. غونډې، په شان، شانته.

**څیرنګی** (cirangáy) نر.م. ۱) چیږ، چښنګی، تېروسکی، تېره کانی؛ ۲) وګ. چیږ.

**څیرنه** (cirə́na) ښځ.م. بڅه کونه، چیرنه، شلونه، دوه ځایه کونه، جوونه.

**څیرول** (cirawə́l) مص. مت. بڅه کول، چیرول، شلول، دوه ځایه کول، چوول، څیرې کول.

**څېره** (cerá) ښځ.م. ۱) مخ، بشره، شکل، بڼه؛ ۲) وګ. څروه؛ ۳) هغه توکر چې د مرغانو شکل پرې ایستل شوی او ښکاریان مرغان غولوي او بیا یې ښکار کوي؛ ٤) تصویر، انځور.

**څیره** (círa) ښځ.م. ۱) څرک، د لمر څرکه؛ ۲) چیره، لته؛ ۳) وړه پتۍ، ګرډۍ، کوړۍ؛ ٤) اره، فلزي غابښوره آله ده.

**څېره غونډ** (ceraǧwánḍ) اا. د تصویرو مجموعه، البوم.

**څېره کښ** (cerakáṣ) اا. انځورګر، عکاس.

**څېره کول** (cerakawə́l) مص. نومکښنه، نوم لیکنه (د عسکرۍ خدمت لپاره).

**څیرۍ** (cirə́y) ښځ.م. ۱) سېرۍ، هغې ځمکې ته، ستانه خلتو یا [illegible] سبګرو ته ور کول کېږي؛ ۲) عملنامه.

**څېرۍ** (céray) ښځ.م. ۱) [illegible] ی، سېرۍ؛ ۲) الوې کاریز چې اوبه ولري؛ ۳) څرې اغزکی، سپل، یو ازغن بوټی دی.

**څیرۍ** (círay) نر.م. رقعه، د کاغذ ټوټه.

**څیرې** (ciré) ص.نب. شلېدلی، دوه ځایه، بڅه.

**څیرېدل** (ciredə́l) مص. ل. شلېدل، چیرېدل، بوڅه کېدل، بڅه کېدل، بوڅه کېدل.

**څېړاند** (ceṛā́nd) اا. (لوی څېړونکی، محقق.

**څېړل** (ceṛə́l) مص.مت. ۱) تحقیق کول، پلټنه کول، ریسرچ کول؛ ۲) چړل، تکلیف رسول.

**څېړنپال** (ceṛanpā́l) نر.م. پوهپاند، د پښتو ټولنې د علمي کدر آخري او لوړه علمي درجه چې د پوهنتون د پوهاند رتبې سره برابره ده.

**څېړنتون** (ceṛantū́n) د څېړنې ټولنه، فرهنګستان.

**څېړندود** (ceṛandód) ا. د څېړنې دول، د څېړنې مېتود.

**څېړندوی** (ceṛandóy) نر.م. د پښتو ټولنې د علمي کدر پنځمه درجه چې د پوهنتون د پوهنوال درجې سره سمون خوري.

**څېړنمل** (ceṛanmā́l) نر.م. د پښتو ټولنې د علمي کدر دريمه درجه چې د پوهنتون د پوهنمل د درجې سره سمون لري.

**څېړنوال** (ceṛanwā́l) نر.م. د پښتو ټولنې د علمي کدر څلورمه درجه چې د پوهنتون د پوهندوی د درجې سره سمون لري.

**څېړنه** (ceṛə́na) ښځ.م. ۱) تحقيق کونه، ريسرچ او بحث کونه، پلټنه، تتبع کونه؛ ۲) تنګونه، زحمت رسونه، تکليفونه.

**څېړنيار** (ceṛanyā́r) نر.م. د پښتو ټولنې د علمي کدر دوهمه درجه چې د پوهنتون د پوهنيار له علمي درجې سره برابره ده.

**څېړونکی** (ceṛū́nkay) نر.م. ۱) د پښتو ټولنې د علمي کدر لومړی درجه چې د کابل پوهنتون د پوهيالي درجې سره برابره ده؛ ۲) فا.نر.م. بحث کونکی، تحقيق کوونکی؛ ۳) تکليف رسوونکی، تنګوونکی، زحمت رسوونکی.

**څېره** (ciṛá) ښځ.م. ۱) لين، قطار؛ ۲) ټولی؛ ۳) غوټه.

**څېړی** (ceṛə́y) ښځ.م. ۱) بلوط، يو ډول غرنی ونه ده چې يو ډول مېوه (پيرګي) هم نيسي؛ ۲) چوټی، د سر چوټکه؛ ۳) سرپه څړی.

**څيز** (ciz) نر.م.ج. (ج. څيزونه) شی، متاع، مال.

**څيزنی** (cizní) ښځ.م. سېزني، سوزني، هغه پټی چې ماشوم په ورنې کې وربانده تړي.

**څيزنوم** (ciznū́m) ا. اسم، ذات نوم.

**څېږمه** (ceẓmá) ښځ.م. څېږمه، د سترګې هغه برخه چې بانه وربانده راشنه کېږي.

**څيکل** (cikə́l) مص. مت. لړمون پرې کول، لړمابښ يا بل شی ټوټه ټوټه يا پرې کول.

**څيکنه** (cikə́na) ښځ.م. وروبه، ميده کونه، د لورمابښ (لړمون) يا بل شي وروبه.

**څيکه** (ciká) ښځ.م. شمله، د دستار شمله.

**څېکی** (cekáy) نر.م. د کوچنيانو يوه ناروغي ده.

**څيلمڅي** (cilәmcí) ښځ.م. و.ګ. چلمچي.

**څېلمه** (celmá) ق. ۱) ټول، تمام، ګرده، بېخي، له يوه مخه؛ ۲) غاړې ته، کناره، اړخ ته.

**څيلی** (cilə́y) ښځ.م. ۱) سېلۍ، سخته او تنده هوا، توپان؛ ۲) تاب، توان، وس، قدرت.

**څېلی** (celə́y) ښځ.م. تناو، طناب.

**څينځسه** (cinǰə́sa) ښځ.م. چونګښه، چنډخه.

**څينزری** (cinzə́ray) نر.م. و.ګ. تمځری.

**څينګکه** (cingáka) ښځ.م. څينګی، يو ډول وړه مرغی ده.

**څينور** (cinawár) نر.م. غبرګولی، د جوزا مياشت.

**څينی** (cinə́y) ښځ.م. سنی، اينځی، انځی، ډوری، تاو کړې سنی.

# ح

ح^(۱) (he) ښځ.م. د پښتو الفبې دوولسم توری چې ابجدي ارزښت يې «۸» دی.

ح^(۲) (he) ښځ.م. د حرب يا حربي لنډ شکل.

حاتم (hātim) نر.م. قاضي، حاکم.

حاجب (hājíb) نر.م ۱) ورساتونکی، دروازه وان؛ ۲) ورځه، د سترګې وروځه.

حاجت (hājat) نر.م. ضرورت، احتياج، اړه. ارتيا.

حاجتمن (hājatmán) ص. نر.م. اړ، محتاج.

حاجز (hājíz) ص.نر.م. ۱) مانع، خنډ؛ ۲) حايل؛ ۳) بېلوونکی؛ ٤) د توري تېره والی.

حاد (hād) ص.نر.م. ۱) تېز، تېره؛ ۲) سخت؛ ۳) قاطع؛ ٤) نازک او حساس حالت.

حادث (hādís) ص. نر.م ۱) نوی، تازه؛ ۲) پيدا، پېښ، د قديم ضد.

حادثه (hādisá) ښځ.م. ۱) پېښه، غورځکه، واقعه، پېښېدنه؛ ۲) بلا، اپت؛

حاذق (hāzíq) ص. نر.م. ۱) هوښيار، پوه، ماهر، څېرک؛ ۲) پوه طبيب، پوخ طبيب.

حارث (hārís) نر.م ۱) زمري؛ ۲) بزګر، کروندګر.

حارس (hārís) ص. نر.م. ساتونکی، ساتندوی.

حارص (hārís) ص. نر.م. حريص، نه مړېدونکی، حرص لرونکی، وږ سترګی، لېوال، لوېږنده.

حازم (hāzím) ص. نر.م. ۱) هوښيار؛ ۲) وړاندې وروسته سنجوونکی، دور انديش.

حاسد (hāsíd) ص. نر.م. رخه لرونکی، ورېغوني. بدنيتی، نه لوروونکی.

حاسه (hāsá) ښځ.م. ۱) حس، حاس، مدرکه قوه؛ ۲) هرحس لکه باصره، سامعه، لامسه، تعادل، توازن، نرسي او زيږتيا او نور...

حاشيه (hāšiyá) ښځ.م. ۱) څنډه، ژۍ، غاړه، څېرمه؛ ۲) مج. لمن ليک؛ ۳) مج. د موضوع څخه لرې کېدنه.

**حاصل** (hāsíl) نر.م. ۱) سود، مطلب، گټه، ثمره، نتیجه؛ ۲) موندنه، لاس ته راوستنه؛ ۳) ابېره، فصل، ابره، تول.

**حاصلخېز** (hāsilxéz) ص. نر.م.ج. ابېرور، لېڅټ، ښه فصل کوونکی، آباد (ځمکه).

**حاصلول** (hāsilawə́l) مص. مت. پیدا کول، گټل، لاس ته راوستل.

**حاصلېدل** (hāsiledə́l) مص. ل. پیدا کېدل، گټل کېدل، ترلاسه کېدل، بودېدل.

**حاضر** (hāzír) ص. نر.م. ۱) سوب، موجود؛ ۲) تیار، اماده، چمتو.

**حاضرباش** (hāzirbā́š) نر.م. اردلي، نوکر، خدمتگار، محافظ.

**حاضرجواب** (hāzirjawā́b) ص. نر.م. ځواب لوڅی، زرځوابی.

**حاضر والی** (hāzir wā́lay) نر.م. ۱) سوبتیا، سوبوالی، شته والی؛ ۲) چمتووالی.

**حاضرول** (hāzirawə́l) مص. مت. ۱) موجودول؛ ۲) چمتوکول؛ ۳) وړاندې کول؛ ٤) راوستل، مخې ته درول.

**حاضري** (hāzirí) ښځ.م. ۱) حاضروالی، حاضرتوب؛ ۲) د حاضرۍ کتاب.

**حاضرېدل** (hāziredə́l) مص. ل. موجودېدل، تیارېدل، وړاندې کېدل.

**حاضرین** (hāzirín) نر.ج. موجود کسان، راغلي کسان.

**حافظ** (hāfíz) ص. نر.م. ۱) ساتونکی؛ ۲) په یادوونکی، چا چې کوم مطلب حافظې ته سپارلي وي؛ ۳) د قرآن مجید قاري.

**حافظه** (hāfizá) ښځ.م. یاد، د یادونې او په یاد ساتنې ملکه.

**حاکم** (hākím) فا. نر.م. ۱) ولسوال، اداره کوونکی؛ ۲) په ځان باور لرونکی.

**حاکمیت** (hākimiyát) نر.م. واک لرنه، واک درلودنه، تسلط، قدرت درلودنه.

**حال** (hāl) نر.م. ۱) راز، پته، درک؛ ۲) اوسنی وخت، موجوده وخت؛ ۳) وضع، حالت.

**حالت** (hālát) نر.م. کیفیت، وضع، حال، څرنگوالی

**حالنامه** (hālnāmá) ښځ.م. د علي محمد مخلص بن ابوبکر قندهاري د هغه اثر نوم دی چې د یوولسمې هجري سندی په نیمایي کې لیکل شوی دی. دحالنامې دلیکنې تاداو د پیر روښان له خوا ایښودل شوی و.

**حامل** (hāmíl) ص. نر.م. بارووړونکی، باردار، وړونکی، حمل کوونکی.

**حامله** (hāmilá) ص. ښځ.م. بلاربه، امیندواره، دوه ځانه، ډکه.

**حامي** (hāmí) ص.نر.م ۱) پلوی، ملاتړ، حمایت کوونکی؛ ۲) ساتونکی؛ ۳) دنوح علیه السلام زوی (حام) ته منسوب.

**حاوي** (hāwí) ص. نر.م. رانغاړونکی، په ځان کې لرونکی، په برکې لرونکی، ځایوونکی.

**حایز** (hāyáz) ص.نر.م. لرونکی، درلودونکی.

**حایل** (hāyél) ص.نر.م. مانع، بندوونکی، ستنوونی د دوو څیزونو ترمنځ مانع، خنډکېدونکی.

**حب** (hab) نر.م. (ج. حبوبات) دانه، لکه د غنمو، نخودو او نور.

**حُب** (hub) نر.م. مینه، محبت، عشق، دوستي.

**حباب** (hobā́b) نر.م. غوټۍ، پوکانه، حورخوټۍ، کوبۍ، دومبکی، د اوبو پر سر پوکانه.

**حباله** (habālá) ښځ.م. ۱) لومه، دام؛ ۲) پړی، رسۍ؛ ۳) قید، بند.

**گلکاري** (gılkāri) ص. ښځ.م. د ختو او تیږو یا خښتو دېوال جوړونه، معماري، ختګري.

**گل کڅ** (gwalkáč) نر.م. گل ورشو، گل لرونکی کڅ.

**گلکڅونه** (gwalkacūna) نر.ج. د گلونو کڅونه، د گلونو ورشوګانې.

**گل کر** (gwalkár) نر.م. د گلو کر، گل کرنه.

**گل کنکړ** (gwalkankáṛ) نر.م. گل ډنډر، بندک.

**گلګنډ** (gwalgáṇḍ) نر.م. گل گنډنه، سکوینه، گل دوزي.

**گلګنډنه** (gwalganḍə́na) ښځ.م. و.گ. گلګنډ.

**گلګون** (gwalgū́n) ص. نر.م. ۱) د گل په څېر، گلرنګ؛ ۲) مج. سور رنګ.

**گلګی** (gılagáy) نر.م. دغوا وروکی خوسکی.

**گل ګېډۍ** (gwalgeḍáy) ښځ.م.ج. گلدسته، گل غونچه، د گلونو ګېډۍ.

**گل گل** (galgā́l) نر.م ۱) کلکل، غرتو، تېتو، غرتن؛ ۲) د نارنج په څېر یوه مېوه.

**گل گوتي** (galguṭí) ص.نر.ج. و.گ. گاړگوتي.

**گل گوتو** (gwalgūṭú) نر.م. ۱) د څاروي د مرۍ بندېدو یوه ناروغي؛ ۲) مج. د مرۍ غوټه.

**گل لښته** (gwallaṣ́ta) ښځ.م. د گلو لښته، د گل څانګه، شاخچه، گل.

**گلماخۍ** (gwalmāxáy) ښځ.م. ۱) د سپينو زرو یوه ښځينه گاڼه؛ ۲) یو ډول بوټی دی.

**گلماله** (gılmālá) ښځ.م. ختموبني، ختماله.

**گلمخې** (gulmáxe) ص. ښځ.م.ج. د گل غونډې مخ لرونکې، گلرخه، گلرو.

**گل مر** (gwalmár) نر.م. کافرگل، نمرگله

**گلمل** (galmál) نر.م. ککړ، لیت پیت وینو او نورو شیانو ککړ، لړلی.

**گلملتوب** (galmaltób) نر.م.

**گلملول** (galmalawә́l) مص. مت. ککړول، په ختو، وینو او نورو شیان لیت پیتول.

**گلملېدل** (galmaledә́l) مص.ل. ککړېدل، لیت پیتېدل.

**گل موښته** (gwalmuṣ́ta) ښځ.م. گل ګېډۍ، گل غونچه.

**گل مونګره** (gwalmūngrá) ښځ.م. گل غوټۍ، خوغاړه.

**گلميا** (gulmyā́) ښځ.م. د کبانو د جال هغه خانې چې رسۍ په کې اچول کېږي.

**گل مېخ** (gwalméx) نر.م. غټ‌سری مېخ، گل مېخی.

**گل مېخۍ** (gulmexáy) ښځ.م.ج. د سپينو زرو یو ډول پسول دی چې په لستونو کې یې ټک وهي.

**گلنار** (gwalnā́r) نر.م. ۱) د انار گل؛ ۲) سور رنګ لرونکی؛ ۳) نرګس ته ورته؛ ٤) یوه بې مېوې ونه چې د انار په څېر ده.

**گلندوری** (glandū́ray) نر.م. مرچ، سور مرچکی.

**گلو**(۱) (gulū́) نر.م. هغه لرګی چې د ژرندې تیر له پل سره تینګوي.

**گلو**(۲) (galū́) نر.م. ۱) توکه، شتی، تانته؛ ۲) د کیوړې گل؛ ۳) ډومبکی، تمبکه، پیاځې، د کبين ورۍ.

**گلواره** (galwārá) ښځ.م. د آس څولۍ، خورجين.

**گلوانه** (gulwāná) نر.م. د شومړو د کڅوړې د راڅوړندولو تناب.

**گلوبند** (gulūbánd) نر.م. ۱) غاړه کی، یوه ښځينه گاڼه ده؛ ۲) دغاړې دسمال.

**گلوټ** (galwáṭ) نر.م. د غوښې توټه.

**گلوټه** (galuṭá) ص. ښځ.م. ۱) د غوښې یا د ختو غټه ټوټه؛ ۲) غټه مرۍ، غټ کپ، خمڅه.

گل ورشو (gwalwaršó) ښځ.م. د گلو ورشو، گلښمه، بېشه، گل.

گلورین (gulwarín) نر.م. گل ورونکی، گل نولونکی، گل باران، گلرېز.

گلوزمه (gwalwázma) ښځ.م. گلرنگه، گل ته ورته، گل غوندې، گلفام.

گلوږم (gwalwáẓam) نر.م. گل بوی، د گل بوی.

گلوښته (galúṣta) ښځ.م. متروکه، قمچینه.

گلول (gwalawál) مص. مت ۱) اور مړ کول؛ ۲) مج. زغمل، تحمل کول.

گلوله (galulá) ښځ.م ۱) وړوکی غونداری، گیتی؛ ۲) گلگله، پکوړه؛ ۳) گولۍ، کارتوس.

گل وله (gwalwála) ښځ.م. د گلونو والا وله، گل بید.

گلوه (galwá) ص. نر.م. ۱) یو ډول مرز چې توره یا سره غاړه لري؛ ۲) ص. ښځ.م. د غوايي د خرمنې شا وخوا چې گنډل شوې وي.

گله (galá) ښځ.م. رمه، پاده، کنډک، گورم.

گله بان (galabā́n) ص.نر.م ۱) شپون، شپونکی؛ ۲) پاده وان، ساروان؛ ۳) اسبون، اسبه.

گله گله (gálagála) د مرزانو د نیولو لپاره آواز.

گله گرگی (galagárgay) نر.ج. گگرگی، د واورې وړې وړې دانې چې د ږلۍ غوندې ورېږي.

گلۍ (galә́y) ښځ.م ۱) ږلۍ؛ ۲) د کوچنیانو یوه لوبه.

گلی (guláy) نر.م. ام الصبیان، د کوچنیانو یوه ناروغي ده.

گلي (gulí) ص. یو ډول سره منه.

گلې (galé) ښځ.ج. یوه ناروغي ده چې په مرۍ کې غوټې پیدا کېږي.

گلیا (galyā́) ص.نب ۱) ډېر پوخ، خوړین؛ ۲) وېلې شوې؛ ۳) ډنگر، لاغر، خوار.

گلیخار (gulixā́r) نر.م. یو ډول سره درمل چې د سترگو او خولې پخېدو لپاره کارېږي.

گلېټی (gileṭáy) ص. نر.م. یو ډول توپک و.

گلېدل (galedә́l) مص. ل. ۱) ډنگرېدل، خوارېدل؛ ۲) وېلې کېدل.

گلېډنده (galeḍә́nda) نر.م. ډنډه گولۍ، شونټی ډنډی، کیچ ډنډی، د کوچنیانو یوه لوبه.

گلېگه (galegá) ښځ.م. شودیاره شوې ځمکه.

گلیم (glīm) نر.م. تغر، څټۍ، کمبلۍ.

گلیون (gwaləyū́n) نر.م. د گلو سیال، په گلونو کې گرځېدنه، گل ننداره، گلگشت.

گم[1] (gam) نر.م.ج. ۱) سرېښ، څلېښ، سرېښ؛ ۲) اوری، د غاښونو بېخ پوښونکې غوښه.

گم[2] (gum) ص. نر.م. ۱) لرې، غایب؛ ۲) ضایع، توی؛ ۳) ناپیدا؛ ٤) مج. پریشان، وارخطا.

گمارل (gumārә́l) مص. مت. ۱) گومارل، امر کول؛ ۲) مقررول، سپارل؛ ۳) پارول، پاڅول؛ ٤) انگېدل، ننگېدل.

گمارونی (gumārū́nay) ص. نر.م. ۱) مشر، د سر سړی؛ ۲) لارښودونکی.

گمان (gumā́n) نر.م. وگ. گومان.

گمبش (gambū́š) ص.نر.م. د لویو پښو یا پنجو خاوند.

گمبزی (gambízay) نر.م. نارنج.

گمبېزی سورن (gambézaysurán) نر.م. نارنجي کونگ او مست اس.

گمبله (gambelá) ښځ.م. کمبله، گومبله، یوناني دوا ده چې څارویو ته ورکول کېږي.

گمراه (gumrā́) نر.ج ۱) بې لارې، ښویېدلی؛ ۲) مج. بې دینه؛ ۳) اوړېدلی، بې لارې.

گمرک (gumrák) نر.م. هغه دولتي اداره چې له سرحد نه د مالونو د صادرولو او واردولو مالیه

او محصول اخلي.

**گمند** (gamánd) ص. نر.م. گمنده، چاغ سړی.

**گمه** (gamá) ښځ.م. ووړکی لښتی چې د مرغیو نیولو دام په کې ږدي.

**گمیزه** (gamíza) ښځ.م. و.گ. گومبته.

**گن** (gan) نر.م. ۱) عادت، خوی؛ ۲) ښه والی؛ ۳) جوهر، هنر؛ ٤) غوزه، د اوښانو او غوایانو غټ منکوړ.

**گناه** (gunāh) ښځ.نر.م. ۱) وبال، بدکار، بد عمل، جرم، خطا؛ ۲) نافرماني.

**گناهکار** (gunāhkā́r) ص.نر.م. د خدای گناهکار، مجرم، بدکاري، گناهگار.

**گنانگول** (gunāngúl) نر.م. غرنی پالک، شلخی.

**گنايي** (ganāyí) ښځ.م. دژرندې آبخانه، لمخانه، د ژرندې تر کوټې لاندې د اوبو د تېرېدلو ځای.

**گنتری** (gantráy) نر.م. گنتی، گېنتی، کولنگ.

**گنته** (gantá) ښځ.م. گونته، گنتی.

**گنتی** (gantáy) ص. نر.م. لنډی، منډی، چیتکی، ټیټکی سړی، منډری.

**گلتی** (gal táy) ښځ.م. غرنی بوټی دی چې ښځې یې د کالو پر مینځلو لپاره کاروي.

**گننه** (gɪntá) ښځ.م. شپېته دقیقې، یو ساعت.

**گنتی** (ganṭáy) ښځ.م. گننه، گنتری، یو ډول کودال چې سخته ځمکه پرې کنستل کېږي.

**گنج** (ganj) نر.م. ۱) خزانه، گنجینه؛ ۲) زېرمه، گودام؛ ۳) دمېوې راغونډولو شکرې؛ ٤) د سر وېښته نه کېدل، گنجیتوب.

**گنجایش** (gunjāyáš) نر.م. ۱) ځایېدنه، ځای؛ ۲) مج. فایده، بچت.

**گنجپور** (ganjpū́r) نر.م. کونی کبر، چنگاښ، کوني‌کاټو.

**گنجرخی** (ganjarxáy) نر.م. دورخونو مورۍ په ورخونو کې د اوبو د ښېښلو لرگی.

**گنجره** (ganjrá) ښځ.م. غازه، سرخي، پوډر.

**گنجلک** (gunjulúk) نر.م. و.گ. گونجلک.

**گنجور** (ganjū́r) ص.نر.م ۱) خزانه؛ ۲) خزانه دار.

**گنجی** (ganjáy) ص. نر.م. ۱) پک، لښهنا؛ ۲) د جوارو هغه وږی چې یو څو دانې په کې وي.

**گنجۍ** (ganjáy) نر.م ۱) جاکټ، بنیان؛ ۲) غونډاری، د سنیو غونډاری؛ ۳) ښځ.م.ج. ټپوس غونډې. یو مردار خور مرغه.

**گنجینه** (ganjína) ښځ.م. خزانه، مخزن، زېرمه.

**گنچه** (ganča) ښځ.م. گنځه، غوري مست، یو ډول خودرویه خوشبویه بوټی دی.

**گنځې** (gunǰé) ص. ښځ. م. ج. و.گ. گونجه.

**گنځپه** (ganǰapá) ښځ.م. ۱) گنځپه؛ یو ډول گیډړه ده؛ ۲) نولی.

**گنځه** (ganǰa) ښځ.م. خنځه، خنځه گوتمه

**گند**(۱) (gand) نر.م. ۱) خځلې؛ ۲) چتلي، ناپاکي؛ ۳) مج. بدبويي؛ ٤) خوسا.

**گند**(۲) (gand) اد. گونډې، گنې، گڼه، گنې.

**گنداو** (gandā́w) نر.م. ولاړې اوبه، ولاړې خوسا شوې اوبه.

**گندبلا** (gandbalā́) ښځ.م. ناولتیا، بېکاره او معمولي شی.

**گندخېره** (gandcéra) ښځ.م. ځابنکه، ځارکه، شامتوره، یو ډول توره مرغۍ ده.

**گندک** (gandák) نر.م. گوگړ، گندهک، گیگړ، یو ډول کېمیاوي معدني سلفر.

**گندکه** (gandaka) ښځ.م. د بېدیا سپېښتې یو ډول لوبه چې (سه بجل) یې هم بولي.

**گندگي** (gandagí) ښځ.م. ناولې ځیز، خوسا شی.

گندنه (gandaná) ښځ.م. اړکی، کوکی.
ګنده (gandá) ص. ښځ.م. ۱) ناپاک، ناولی، پلید؛ ۲) بدکردار، شریر؛ ۳) زړه خرقه، د ملنګانو کنډ؛ ٤) هغه غله چې نایي یا استاکار یې د کال په پای له خلکو نه اخلي.
ګنده بوټی (gandabū́ṭay) نر.م. یو ډول تریخ، خودرویه بوټی دی.
ګنده‌ړی (gandaṛáy) نر.م. یو غرنی بوټی دی چې بدبوی لري او ګنده فیروزه ورته لاس ته راځي.
ګنده خړ (gandaxáṛ) نر.م. ګنده خړی، تېزورې، هغه ځلې چې سېلاو له ځان سره راوړي وي.
ګنده خړه (gandaxáṛa) ص. ښځ.م. ناولې، چتله.
ګنده لېوه (gandálewə) نر.م. سرکوزی، خنزیر، سور، بدځناور، ببو.
ګنده مار (gandamā́r) نر.م. ۱) زوویل، زاویل، خول؛ ۲) ګندګیر، کوچکر، لاګ ساک.
ګنده نل (gandanál) نر.م. دورمه، کړکی.
ګنده هوږه (gandahū́ẓa) ښځ.م. ګندنه.
ګندېر (gandér) نر.م. و.ګ. ګنډېری.
ګندېرځر (gandercár) نر.م. ګندېرچر، ګنډېری، زهربوټی، ګنده څر.
ګنډ (ganḍ) نر.م ۱) ګینده، جوړښت سکوی، ټکی؛ ۲) ډول، هغه ټوټه چې د ګرېوانه لاندې ګنډل کېږي؛ ۳) پاموړه.
ګنډاسه (ganḍā́sa) ښځ.م. درنه چاړه، ټوکیا، ټوکه.
ګنډڅېره (ganḍcerá) ښځ.م. ځابنکه.
ګنډکپ (ganḍkáp) ص.نر.م. ګڼ ګپ، دوکه‌باز، کیسه‌بر، جیبونه‌وهونکی.
ګنډګین (ganḍgín) ص.نر.م. نخي، سپنسین.
ګنډل (ganḍə́l) مص. مت. ټکوهل، بخیې تېرول، سره یو کول (په‌ستن یاد خیاطۍ په ماشین).

ګنډل پېرل (ganḍəlperə́l) مص. مت. ګنډل، سکنل، په‌ستن او تار کار کول.
ګنډلی (ganḍaláy) ښځ.م. ګنډه، غوټه، پنډوکی، پنډوکی، ګټلی.
ګنډنی (ganḍanáy) ص.نر.م. لنډ او بې لستوڼو کمیس، ګنډولی، ګنډی.
ګنډوړی (ganḍupáṛ) نر.م. ټړنه پرانیستنه، اړوټړ، چل‌وټړ.
ګنډون (ganḍū́n) نر.م. ګندنه، ګنډل، پیوند.
ګنډونکی (ganḍū́nkay) فا. نر.م. خیاط، ګنډونی، هغه چې کالي ګنډي، درزي.
ګنډونی (ganḍū́nay) فا.نر.م. ګنډونکی، خیاط.
ګنډه (gánḍa) ښځ.م. غوټه، پنډوکی؛ ۲) ډډه، د پړتوګابټ ځای؛ ۳) د لرګي غوټه؛ ٤) مج. جادو.
ګنډه ځر (ganḍacár) نر.م. ګنډېری، ګنډېر، خرزهره، سم الحمار.
ګنډه ګنډه (gánḍagánḍa) ص. ګونځې ګونځې، ګونجې ګونجې، کالکوټې.
ګنډه تل (ganḍatál) نر.م.و.ګ. ګندنه.
ګنډه کول (ganḍakawə́l) ښځ.م. غوټه کول.
ګنډهېر (ganḍhér) نر.م. ۱) ګنډېر، د زهرو په څېر ډېر تریخ؛ ۲) مج. د زهرو، وژونکی.
ګنډی (ganḍáy) ص. نر.م. ۱) و.ګ. ګنډولی؛ ۲) د دمړي ځلورمه برخه، ۳) د پخوانۍ پیسې شپاړسمه برخه؛ ٤) د کوچنیانو لنډو لستوڼو والا کمیس.
ګنډۍ (ganḍə́y) ص. ښځ.م. د وړیو یا پنبې جاکټ، کوچی، جمپر، د شپانه چپنه.
ګنډیاره (ganḍyā́ra) ښځ.م. یو ډول نبات دی چې ګندیاله یې هم بولي.
ګنډېر (ganḍér) نر.م. و.ګ. ګنډهېر.

**گنډېرڅه** (gandercá) ښځ.م. غټه مېره.
**گنډېرمرې** (gandermarə́y) ښځ.م. زهر مهره، تریاق، یو ډول مهره چې د زهرو اثر لیرې کوي.
**گنډېرن** (ganderə́n) نر.م. زهر لرونکی، هغه شی چې زهر لري.
**گنډېرۍ** (ganderə́y) ښځ.ج. د سپین کیړي گټني توته، ککیري، منتیرې، گټرکه.
**گنډېرۍ** (ganderáy) نر.م. یو څنگلي او غرنی بوټی دئ چې سره او سپین گلان کوي.
**گنر** (ganár) ص. نر.م. زوړ او ډنگر غویی.
**گنس** (gans) ص. نر.م. گیچ، بې سده، بې هوښه.
**گنستوب** (ganstób) نر.م. بېهوښي، سرنډالي، واگنتوب، گنستیا، سرگرداني.
**گنسول** (gansawə́l) مص.مت ۱) بېهوښه کول، گیچول؛ ۲) سرگردان کول، پریشانه کول.
**گنسېدل** (gansedə́l) مص.ل. ۱) بېهوښه کېدل، بې سده کېدل؛ ۲) پریشانه کېدل.
**گنکي** (ganki) ص. نب. د کومې سختې ضربې له امله بېهوښي پیدا کېدل.
**گنگ** (gáng) نر.م. ۱) دکوژدې بلنه؛ ۲) ص.نر.م وارخطا، اوتر؛ ۳) نر.م. تهکس، هغه پیسې چې یو هندو به د ځان د ژغورنې لپاره یو پښتون ته ورکولې؛ ۲) یو ډول مرغی؛ ۳) مج. ختیځ.
**گنگان** (gangā́n) نر.ج. یو ډول بوټی دی چې د پانو دوره یې د کوچنیانو په مغانو کې اچول کېږي.
**گنگټ** (gangaṭ) نر.م. و.گ. گونگټ.
**گنگخر** (gangxár) نر.م. و.گ. گنده خر.
**گنگخړ** (gangxáṛ) نر.م (ج. گنگخړي) د سېلاب په مخکې واره واره لرگي.
**گنگر** (gangár) نر.م. د سنډا د ملا تیر.
**گنگره** (gangrá) ښځ.م. کړاو، تکلیف، زحمت.
**گنگري** (gangarí) ص. ښځ.م. ټینگه ختیه.
**گنگړ** (gangáṛ) نر.م. یو ډول گانه یا پسول.
**گنگس** (gangs) ص.نر.م. ۱) وارخطا، سرگردان؛ ۲) بې خوده، بېهوښه، بې سده.
**گنگستیا** (gangstyā́) ښځ.م. گنگستوب، گنگسي، ښېسدتیا، گیچي.
**گنگ سنگ** (gangsáng) ص.نر.م. گنگ منگ، غلی، چوپ، گونگ سونگ.
**گنگسوونکی** (gangasawū́nkay) نر.م. بېسدوونکی، بېهوښه کوونکی.
**گنگلو** (ganglū́) نر.م. ټېپر، شلغم.
**گنگو** (gangū́) نر.م. ۱) زعفران؛ ۲) مج. زېړ، زېړونکی.
**گنگوچه** (gangučā́) ښځ.م. د انگورو وړی، د انگورو غونچه، گنگورۍ، وابنکی.
**گنگورۍ** (gangū́ray) نر.م. ډنډورۍ، د انگورو غوشه، دکېلو وړی، وابنکی، د خرما وړی.
**گنگوړه** (gangūṛá) ښځ.م. گانگوړه، یو بوټی دی.
**گنگوړۍ** (gangū́ṛay) نر.م ۱) گانگوړۍ؛ ۲) ترتری توتوری، تتله؛ ۳) گنگوسې، گونگوسه.
**گنگوسه** (gangūsá) ښځ.م. ۱) آوازه، شهره، انگازه ښکالو؛ ۲) افواه، د دروغو خبره خپرېدنه.
**گنگوسې** (gangūsé) ښځ.ج. و.گ. گنگوسه.
**گنگوماښام** (gangūmāṣā́m) نر.م. رڼا ماښام، ماښام چې پوره تیاره نه وي، گونگوڼ ماښام.
**گنگي** (gangí) نر.ج. ۱) گنده گي، پلیتوالی؛ ۲) خځله؛ ۳) د تنې مرداري.
**گنگېلا** (gangelā́) ښځ.م. (ج. گنگېلاوې) انگولا.
**گنگیله** (gangilá) ښځ.م. و.گ. انگوله.
**گننۍ** (gananáy) نر.م. وروکی څېډې رودونکی وری.

**گننی** (gananáy) ښځ.م.ج. د اوبښ پچه، د اوبښ سوټه.
**گنوار** (ganwā́r) ص.نر.م. ۱) بانډیچی، بانډیځی؛ ۲) مج. ساده کلیوال سړی.
**گنه**(۱) (guná) ښځ.م. نښه، گونه، نښان، علامت.
**گنه**(۲) (gána) اد. ۱) باري، گنې؛ ۲) ښځ.م. وگ. گناه.
**گنهار** (ganhā́r) نر.م. گنهار، انگازه، گوبار.
**گنه درو** (ganadráw) نر.م. ۱) درشقي او شوتلو لومړنی لو؛ ۲) گنه درب، نارسېدلی توت.
**گنهر** (ganahár) نر.م. یو ډول سابه دي.
**گنهګار** (ganahgā́r) نر.م. گنې، نیشکر.
**گنهګاره** (gunahgā́ra) ښځ.م. گناهګاره، جرمانه، توغم، جریمه، کفاره، د گناه معاوضه، ناغه.
**گنې** (gáne) اد. نو، نوبیا، گوندې، گنه.
**گنی** (ganáy) نر.م. (ج. گنې) نیشکر.
**گنۍ** (ganə́y) ښځ.م.ج. د مچیو یا ډنبرو گبین.
**گڼ** (gaṇ) نر.م. ۱) ډېر زیات، په شمېر زیات، گڼ گور، سره نښتي دي؛ ۲) گورم، پاده
**گڼا**(۱) (gaṇā́) ښځ.م. د گوڼ گوڼ اواز.
**گڼا**(۲) (gaṇā́) فا. نر.م. شوک چې په پوزه کې گڼ گڼ کوي، چې ژبه یې نښلي، د پوزې د هوا په مرسته خبرې کوونکی.
**گڼاری** (gaṇā́ray) نر.م. په پوزه کې د خبرو آواز، د گڼهو آواز، د گوڼ گوڼ آواز.
**گڼتوب** (gaṇtób) نر.م. گڼتیا، گڼوالی، ډېروالی.
**گڼ رنگی** (gáṇrangay) نر.م. فصل رنگړی کونه، له فصل نه گڼ بوټي ایستنه، نري کول.
**گڼږی** (gaṇžáy) نر.م. گنگوسه.
**گڼ شمېر** (gáṇšmer) نر.م. گڼ، ډېر، زیات شمېر، زیات تعداد.

**گڼ کپ** (gaṇkáp) ص.نر.م. وگ. گنډکپ.
**گڼ کوریز** (gaṇkoríz) نر.م. هغه کلی، سیمه چې گڼ کورونه ولري، خانه های متراکم.
**گڼکی** (gaṇkáy) ص.نر.م. گڼ، د گڼ تصغیر نوم، لږ گڼ.
**گڼ گچه** (gaṇgacá) ښځ.م. د انگورو وږی.
**گڼ گڼ** (gáṇgaṇ) نر.م. په پوزه کې خبرې کونه؛ گونېدل، بنگېدل.
**گڼ گڼی** (gáṇgaṇy) ص.نر.م. غونی، په پوزه کې خبرې کوونکی، خنخونی، گوڼ گونی.
**گڼ گور** (gaṇgū́r) ص.نر.م. وگ. گور.
**گڼ گوندیز** (gaṇgwandíz) نر.م. گڼ گوندي، ډېر گوندي، ډېر حزبي، څو گوندیز.
**گڼ گین** (gaṇgín) ص.نر.م. دسپڼسیو، سپڼسین.
**گڼل** (gaṇál) مص.مت. ۱) قیاس کول، خیال کول، گومان کول؛ ۲) شمېرل؛ ۳) منل، قبلول.
**گڼل کېدل** (gaṇalkedál) مص.ل. پوهېدل.
**گڼ مېشتی** (gaṇmeštay) ص.نر.م. گڼ استوگن، پرنفوس لکه ښار یا هېواد.
**گڼ مېشتي** (gaṇmeští) ص.ښځ.ج. گڼ استوگني، پرنفوسي، تراکم نفوس.
**گڼنی** (gaṇanáy) نر.م. زیلانځ، زیلان، رحم.
**گڼوالی** (gaṇwā́lay) ص.نر.م. گڼتیا.
**گڼ وگړی** (gáṇwagáṛay) ص.نر.م. گڼ وگړنی، پرنفوس، گڼ مېشتی.
**گڼول**(۱) (gaṇawə́l) مص.مت. په خبرو راوستل، گړول، پوښتل.
**گڼول**(۲) (gaṇawə́l) مص.مت. ۱) گورول؛ ۲) ډېرول زیاتول.
**گڼ ولسي** (gaṇwuləsí) ص.ښځ.ج. گڼ ملیتي څو ملیتي، چند ملیتي.

**گڼون** (gaṇū́n) نر.م. شمېرل، شمارل، گڼول.

**گڼونه** (gaṇawə́na) ښځ.م. ۱) ډېرول، ګڼ ګورول؛ ۲) ګرونه، په خبرو راوستنه.

**گڼونی** (gaṇū́nay) فاثر.م. شمېرونکی، محاسب.

**گڼه** (gáṇa) ښځ.م. ۱) شماره، نمبر، شمېره، د اخبار یارسالې یا بل شي لمبر، جلد؛ ۲) لکه چې.

**گڼهار** (gaṇahā́r) نر.م. غونهار، گڼهاری.

**گڼه بوز** (gaṇaḃū́z) نر.م. زورور، مضبوط او تکړه، په خبرو اترو کې تکړه او جزار.

**گڼه خور** (gaṇaxwár) نر.م. هغه څرځای یا ورشو چې وابښه ډېر ولري.

**گڼه گونه** (gaṇagū́ṇa) ښځ.م. د خلکو زیاتوالی، کثرت، یا د خلکو ازدحام.

**گڼه وهل** (gaṇawahə́l) مص.مت. شماره وهل، نومره وهل، نمره زدن.

**گڼ هېوادیز** (gaṇhewādíz) نر.م. گڼ هېوادي، څو هېوادي، چند کشوري.

**گڼی** (gaṇáy) نر.م. غوټی، په پوزه کې خبرې کوونکی.

**گڼېدل**[1] (gaṇedə́l) مص.ل. ډېرېدل، زیاتېدل.

**گڼېدل**[2] (gaṇedə́l) مص.ل. په پوزه کې خبرې کول، گڼ گڼ کول.

**گڼېش** (gaṇéš) ص.نر.م. کمزوری او ضعیف سړی، مانده سړی.

**گڼیه** (gaṇyá) ښځ.م. گانه، گرو.

**گڼیه وال** (gaṇyawā́l) نر.م. گروي دار.

**گو** (go) نر.م. ږو، سوگند، د گواه مخفف، خدایږو.

**گواتل** (gwātə́l) مص.مت. تپې کول، ژوبلول.

**گواته** (gawāṭá) ښځ.م. ډېرې، ډېرې، د څپیاکو ډېرې، گوهاته.

**گواتی** (gowāṭáy) نر.م. بوم، گونگ، یوه مرغه دی چې د شپې له خوا واړه مرغان ښکار کوي.

**گواخ** (gwā́x) نر.م. ۱) مرسته، ارخ، مدد، پره؛ ۲) پخلاکونه.

**گواخل** (gwāxə́l) مص.مت. ۱) پخلاکول؛ ۲) مرسته کول، مدد کول.

**گوار**[1] (gwā́r) نر.م. ۱) پاده، گله، کوهار؛ ۲) د مزاج مطابق، ۳) مج. خوندور؛ ٤) بخیل؛ ٥) بدشکل؛ ٦) پوچ، گنده؛ ۷) یو ډول مالگه ده چې خاورو ته ورکول کېږي؛ ۸) سور، گورا، پیرنگی؛ ۹) ډول، قسم.

**گوار**[2] (gowā́r) ص.نر.م. ساده باده، بوله، جټ، بې تعلیمه، جاهل، شوده بوده.

**گوارچي** (gawārčī́) ص.نر.م. پاده وان، گله بان، غوبه، گواري، شپونکی.

**گواری** (gawārə́y) ښځ.م. بوری، د مزرو څولی چې د خاورو چلولو لپاره کارېږي.

**گواښ** (gwā́ṣ) نر.م. ۱) د جنگ ته جلا کونه؛ ۲) ثالثي، منصفي، منځگړتوب؛ ۳) ډرکه، ډارونه، تهدید؛ ٤) جگړې ته راولاړېدنه.

**گواښکېښ** (gwāṣkéṣ) نر.م. جنگ و سوله، ژغورل، خلاصول، منځگړتوب.

**گواښ گر** (gwāṣgár) نر.م. و.گ. گواښ گرندی.

**گواښ گرندی** (gwāṣgrə́nday) ص.نر.م. دربیمگړی، منځگړی، گواښ گر، گواښ گری.

**گواښل** (gwāṣə́l) مص.مت. ۱) ژغورل، بچ ساتل؛ ۲) جنگ ته تیارول، راپارول.

**گواښلیک** (gwāṣlík) نر.م. اخطارلیک، اخطاریه.

**گواښندوی** (gwāṣandúy) نر.م. و.گ. گواښ گرندی.

**گواښنه** (gwāṣə́na) ښځ.م (ج. گواښنې) گواښول، گوتځنډنه، اخطار.

**گواښېدل** (gwaṣedə́l) مص.ل. ۱) تهدید کول، غورېدل؛ ۲) آماده کېدل، جنگ ته تیارېدل.

گواکې (gwāké) اد. لکه چې، گویا، دا چې، گني.
گوال (gwāl) نر.م. د غره یا غونډۍ د لمني څمکه چې څوړنده وي.
گوالل (gwālál) مص. مت. شهادت ورکول، گواهي ورکول، گواهي لودل.
گوانجه (gawānjá) ښځ.م. منداوو، غابنور، کږو.
گواه (gawāh) ص. نر.م. شاهد، گواهي ورکوونکی، ثبوت ورکوونکی.
گواهل (gawāhál) مص. مت. گوالل.
گواهي (gawāhí) ښځ.م. شهادت ورکونه، شاهدي.
گواهي لل (gwāhilál) مص. مت. شهادت ادا کول، گواهي ورکول.
گوبا (gobā) ص. ښځ.م. کم عقله، غته او چاغه ښځه، احمقه یا نادانه ښځه.
گوبری (gubaráy) ص.نر.م. له ختې یا خاورې یا چونې او خاورې نه جوړ.
گوبلکه (gubaláka) ښځ.م. ۱) یو ډول مرخېړی؛ ۲) پوکانی.
گوبه (gubá) ښځ.م. کرکوره، یوه مرغۍ ده.
گوبیړ (gubíṛ) ص. نر.م. گوباړ، بوډا، ډېر زوړ سړی، شیخ فاني.
گوپ (gūp) نر.م. ۱) د غویي یا اوښ کوپان؛ ۲) گوجر؛ ۲) د سرو زرو زنځیر؛ ۳) د سهیل ستوری، د مني ستوری.
گوپال (gupāl) نر.م. یو ډول گل دی.
گوپالا (gupālā) ص. نر.م. تیارخور، وریا غتې غتې مړۍ اخیستونکی.
گوپان (gopān) نر.م. د گوپ ستوری، د سهیل ستوري، د مني ستوري.
گوپر (gupár) نر.م. وگ. گوار.
گوپژن (gupžán) نر.م. تبدیلي، تغییر، بدلون.

گوپړی (gupṛáy) نر.م. د گوډي، ژې یا مشک د څرمنې پیوند.
گوپله (guplá) ښځ.م. ۱) مړی، نونی، نسواله؛ ۲) وږم، د خولې خوسا بوی.
گوپی (gupáy) نر.م. وگ. گلبی.
گوت (gut) نر.م. گوتمی، گوته، گوتمه، څلی، یو ډول ښځینه گانه چې ښځې یې په گوته کوي.
گوتار (gūtár) ص.نر.م. کوتار، نښتی، اخته، ککړ، لړلی، بوخت، مبتلا.
گوتاوه (gutāwá) ښځ.م. بوتاوه، ځاریوته د شوتلو اوبو سودروشته.
گوتڅنډنه (gwatčanḍána) ښځ.م. گواښ، گواښنه، توربرېښ، غاښ چیچې.
گوتخند (gwatxána) نر.م. دسپښتې یو ډول لوبه ده.
گوتره (gutrá) ښځ.م. یو بوتی دی چې په اوبو کې شین کېږي او لوی د نهر کوي.
گوتری (gutráy) ښځ.م. گوتړی، پتاق، تهاره، کاسه، د مچوغنې یا لیندۍ کاسه.
گوتکی (gwatkáy) ښځ.م. گوته، گوتې.
گوت گوت (gwátgwát) نر.م. پېچ پېچ، یو ډول لوبه ده چې د منځنۍ گوتې په ښکاره کولو ترسره کېږي.
گوتگوتی (gwatgūtáy) ص.نر.م. بدنام، سپک شوی، شاغو شوی.
گوتلکه (gwatláka) ښځ.م. وگ. گتلکه.
گوتلکی (gwatlákay) نر.م. رسوا، د ژبو په سر، په خولو کې، انگشت نما.
گوتگی (gwatkáy) نر.م. خچه گوته، ووړکې گوته.
گوتمنډی (gwatmanḍáy) نر.م. ۱) گوتم ورکونه؛ ۲) عیب لټونه، اعتراض، الزام.

**ګوتمو** (gwatmū́) ښځ.م. ۱) ګوتمیر، ګوتماغو، د ګنډلو یوه آله ده چې ښځې یې په ګوته کوي؛ ۲) د تنې سوری، کاج.

**ګوتمه** (gwatmá) ښځ.م (ج. ګوتمې) و ګ. ګوتمی.

**ګوتمۍ** (gwatmə́y) ښځ.م. ج. ګوته، ګوتمه، یوه ګانه ده چې په ګوته کې اچول کېږي.

**ګوتنیونه** (gwatniwə́na) ښځ.م. ګوتنیوی، غندنه، نیوکه، تنقید.

**ګوتنیوی** (gwatniwə́y) نر.م. و ګ. ګوتنیونه.

**ګوتوړي** (gwatūŕí) نر.ج. دستانې، لاس پېلې، ګوتمې، هغه دستانې چې د باز یا د باښې په لاس کېښولو پر وخت په لاس کېږي.

**ګوتول** (gwatawə́l) مص. مت. ۱) ګوتې ورکول؛ ۲) عیب لټول، اعتراض کول؛ ۳) الزام لګول.

**ګوته** (gwáta) ښځ.م ۱) د لاس یا پښو ګوته؛ ۲) یوه پښتني ګانه چې په ګوته کېږي؛ ۳) یوه لوبه ده.

**ګوته په خوله** (gwtápaxulá) ص. ښځ.م. ګوته په غاښ، حیران دریان، حق حیران.

**ګوت لکه** (gwatlə́ka) ښځ.م. ۱) شوره، ګلکه، هغه جنۍ چې په بدو کې ورکول کېږي؛ ۲) په نښه کول.

**ګوتی** (gū́tay) نر.م. ج. د ښکاري ټوپک د دارو وزن او اندازه.

**ګوټ**(۱) (gwaṭ) نر.م. کونج، زاویه، ګوښه.

**ګوټ**(۲) (guṭ) نر.م. ۱) غړپ؛ ۲) د کوژدې یو رسم چې د جنۍ ورکولو اقرار په کې کېږي او د هلک خپلوانو ته شربت ورکول کېږي؛ ۳) د جولاګانو یوه آله؛ ۲) د سطرنج دانه؛ ۳) غبي او تنبل.

**ګوټ**(۳) (goṭ) ص. نر.م. (مونثه بڼه یې ګوټه) پخ ذهنه، تنبل، کم استعداده، چې سبق یې زر نه زده کېږي.

**ګوټ پېر** (gwaṭpér) نر.م. ګوټ پېرې، د لارې کوږوالی یا کږلیچ.

**ګوټ پېره** (gwaṭpéra) ښځ.م. تاو راتاو، ګوټ پېچومې.

**ګوټخونه** (gwaṭxū́na) ښځ.م. کوټنۍ، کوټګۍ، پسخانه.

**ګوټ غاړی** (gwaṭğāráy) ص. نر.م. ګوټ ناستی، هغه څوک چې له خلکو نه ګوښه ناست وي.

**ګوټک** (guṭák) نر.م. ۱) د جرثقیل او نورو څرخ؛ ۲) و ګ. ګوټکه(۱).

**ګوټکه**(۱) (guṭka) ښځ.م. د تار ګوټ یا کلوله.

**ګوټکه**(۲) (gwaṭáka) ښځ.م. سپما، پس انداز.

**ګوټ ګورت** (gwaṭgurát) نر.م. د کوژدې یو رسم دی چې هلک ته په کې نکریزې پورې کېږي.

**ګوټل** (guṭə́l) مص.مت. غړپ کول، په ګوټ ګوټ څښل.

**ګوټله** (guṭlá) ښځ.م. ۱) د ټوپک ګوټله، د ناوه یې ټوپک لټ یا ګېټ؛ ۲) د تار ګوټ یا کلوله.

**ګوټلې** (guṭláy) ښځ.م. د کوچنیانو لته یې چوشک چې غوړي، شریني او ... پکې ورکول کېږي.

**ګوټ مېچ** (gwaṭméč) نر.م. د ګوټ (زاویې) د مېچ آله، زاویه سنج.

**ګوټ ناسته** (gwaṭnā́sta) ص. ښځ.م. ګوښه ناستې، اعتکاف، ګوښه ګیري.

**ګوټناستی** (gwaṭnā́stay) ص.نر.م. ګوټناست، ګوښه یي، ګوشه نشین.

**ګوټن** (gwaṭán) نر.م. ګوټین، ګوټیز، زاویه لرونکی، ګوشه دار.

**ګوټ والی** (goṭwā́lay) نر.م. نالایق توب، پخ ذهني، تنبلي، کم استعدادي.

**ګوټول** (guṭawə́l) مص. مت. غبي کول، نالایقه کول، پخ ذهنه کول.

**گوټه** (guṭá) ښځ.م. ۱) د سطرنج دانه؛ ۲) یادونه، حفظ کونه.

**گوټه گن** (guṭagán) نر.م. دوبندی، په سرک یا دره کې د ننوتو لاره.

**گوټي** (guṭí) ښځ.م. گوټلی، یو تریخ بوټی دی چې په یوناني درملنه کې هم کارېږي.

**گوټی** (gwaṭáy) نر.م. گونیا، کچه، یوه آله ده چې معماران ورباندې د میزان کارونه برابروي.

**گوټۍ** (guṭə́y) ښځ.م.ج. د سطرنج تخته.

**گوټېدل** (goṭedə́l) مص.ل. غبي کېدل.

**گوټین** (gwaṭín) ص.نر.م. گوټ لرونکی، زاویه لرونکی.

**گوجر** (gujár) نر.م ۱) یوه طایفه چې د غوا – مېښو ساتلو او پیو خرڅولو کار وبار کوي؛ ۲) د یو قوم نوم دی، ژبه یې گوجرو یا گجراتي بلل کېږي.

**گوجرکی** (gugarkáy) نر.م. د ملا د تیر مهره.

**گوجرو** (gujró) ښځ.م. د گوجر قوم ژبه، گجراتي ژبه.

**گوجک** (guják) نر.م. پتیره، د خمیره ضد.

**گوجکه** (gujáka) ښځ.م. یو ډول سوررنگی وره حشره ده، د غره پیشی، حلزون.

**گوجی** (gūjáy) نر.م. ۱) گوډړ، شاپېتی، صدف، یو بحري لعاب داره حیوان؛ ۲) د سترگې گل؛ ۳) کونجکه، خرمهره؛ ٤) خول، پوستکی.

**گوجي** (gují) نر.ج. هغه پې چې شلومبې په کې واچول شي او سمدلاسه ماسته جوړ کړی شي.

**گوچی** (gučáy) ښځ.م.ج. لپانکی، سمتی، اد ک، یو ډول لوبه ده، لشپاک بازي.

**گوځ مځی** (guǰmūǰáy) نر.م. گڅموزی، گونس، غلی، هغه څوک چې ډېرې خبرې نه کوي.

**گوځن** (guǰə́n) نر.م. گوزاڼ، گوزڼ، فالج، د بدن د رچېدو مرض.

**گوڅری** (gucráy) نر.م. پنه، گاولی، کیپی، کوڅره، موچنه.

**گودا** (gudā́) ښځ.م. گوده، زړی، زنی، مغز، د مېوې یا تخم منځ برخه.

**گوداړه** (gudāṛá) ښځ.م. گوسره، په ورمېږ وهنه.

**گودام** (gudā́m) نر.م. گدام، ډیپو، زېرمه تون، د غلو دانو او نورو شیانو د زېرمه کولو ځای.

**گودان** (gudā́n) نر.م. چرچوبی، چارچوبی.

**گودانه** (gudāna) ښځ.م. ناوه، پرناله.

**گودر** (gudár) نر.م. (ج. گودرونه، گودرې) ۱) له سیند نه د پورې وتو لاره؛ ۲) د سیند، چینې، کارېز یا څاه هغه ځای چې ښځې ترې اوبه راوړي؛ ۳) لاره، رو.

**گودره** (gudára) ښځ.م. لاړی، برگه، ډاگه، دستک.

**گوډړ** (gudáṛ) نر.م. ۱) تهوکی، رخت، زړه توټه؛ ۲) ص. نر.م. زوړ او بوډا څاروی؛ ۳) زوړ او بېکاره؛ ٤) نر.م. صدف، سیپی؛ ۵) د کاغذ یا توکر توټه، خرڅوړی، زړه لته، لیتاړه.

**گوډړوالا** (gudaṛwālā́) فا. نر.م. کباړي، زوړ پلوری، کهنه فروش.

**گوډړه** (gudáṛa) ښځ.م. گاډره، زړه او ډنگره ښځه.

**گوډړۍ** (gudaṛə́y) ص. ښځ.م.ج. کند، د ملنگانو گنځ، زوړ او پیوندي څادر.

**گوډړی گوډړی** (gudṛáygudṛáy) ص. نر.م. زړې زړې، توټې توټې، میده میده.

**گوده**[1] (gudá) ښځ.م. ۱) د مال د تړلو کوټه؛ ۲) هغه کوټه چې د اوسېدو وړ نه وي، گاوخونه.

**گوده**[2] (gwáda) ص. نر.م. گوډ.

**گوډ** (guḍ) نر.م. ۱) اللون، خپشاوه، گوړ؛ ۲) د تار گوټ، د تار غوټه؛ ۳) د نهر یا ویالې د اوبو د خېژولو لپاره د لرگیو او خاشاکو تړل شوی بند.

**ګوډا**[1] (gwaḍā́) ص. نر.م. ګوډ، په پښه معیوب، لنګ.

**ګوډا**[2] (guḍā́) نر.م. ۱) ګوډی، پتنګ، بادیوړ؛ ۲) نانځکه، ګوډی، ناوکی؛ ۳) هغه سړی چې د بل په اشاره کار کوي.

**ګوډاګی** (guḍāgáy) نر.م. ۱) نانځکه، ناوکی؛ ۲) ص. لاس پوڅی، د بل لاس آله.

**ګوډانه** (guḍāná) ښځ.م. ۱) ګوډی؛ ۲) جیب، د تخرګ جیب؛ ۳) یو ډول کځوره ده چې د ننه په خیمو کې یې ګنډي؛ ۴) لوډچکی، وړوکې بوجی؛ ۵) د مېوو تولولو څادر.

**ګوډبانی** (guḍbā́nay) نر.م. پېتواری، هغه نوکر چې د سفر یا ښکار په وخت کې چا سره وي او د هغه د مال و اسباب ساتنه کوي.

**ګوډبه** (guḍbá) نر.م. هغه کاریز کنستونکی چې د کاریز پر کوهي باندې کار کوي.

**ګوډچکی** (guḍčákay) نر.م. ګوډانه، ګوډکی، ګوډچکه، وړوکی انبان.

**ګوډری** (guḍáray) نر.م. د ګوډي یا غړکې پښه.

**ګوډکی** (gūḍakáy) نر.م. وړوکی ګوډی، کوچنی ژی.

**ګوډل** (guḍál) نر.م. غوجل، د څارویو د تړلو ځای.

**ګوډلاسی** (gwaḍlā́say) نر.م. معذوره، یو لاسی.

**ګوډمار** (guḍmā́r) فا نر.م. ګوړ کوونکی، ګوډیمار، للون والا.

**ګوډوالی** (gwaḍwā́lay) نر.م. ګوډتوب.

**ګوډول** (guḍawál) مص. مت. د کروندې ځمکه په رمبي یا تېسکورې نرمول، فصل صفا کول.

**ګوډوی** (gwaḍwáy) نر.م. ګېوي، ګېوه، د شرابو لوښی.

**ګوډه** (guḍá) ښځ.م. ۱) ګونته، په ادب کېناستنه؛ ۲) څیر کېدنه، متوجه کېدنه.

**ګوډه بلی** (guḍabálay) نر.م. موش پرانګ، نولی، خرپانډی، خرپاندی.

**ګوډی**[1] (gū́ḍay) نر.م. ۱) هغه څرمنی شی چې دانې، غوږې او نور پکې اچوي؛ ۲) د غړکې لاستی؛ ۳) د جوارو شېښي.

**ګوډی**[2] (gwaḍáy) ص.نر.م. ۱) ګوډ، په یوه پښه ګوډ؛ ۲) د څارویو یوه ناروغي؛ ۳) د جوارو بوټی یو ډول چینجی؛ ۴) د بوسو خوسی، ډډ.

**ګوډی**[3] (góḍay) نر.م. د للون، خښتاوي یا ګوړ کوچنی لور.

**ګوډي** (goḍí) ښځ.م. ګوډیګر، خښتاوه کوونکی.

**ګوډیاري** (gūḍyārí) نر.ج. د غړکې څلور لاستي چې پر هغو سره په خرک کې څوړندېږي.

**ګوډیاری** (goḍyāráy) ښځ.م. چاګله، د اوبو ورکوټې ژی، مشکوله.

**ګوډیال** (guḍyā́l) نر.م. د بوټو ایستلو تېسکوره.

**ګوډی چرګ** (gwaḍayčárg) نر.م. ملاچرګک، هُدهُد.

**ګوډی خادمی** (guḍayxādámay) ښځ.م. یو ډول سمسباره، دسمساري په څېر یوه خزنده.

**ګوډیکه** (gūḍyáka) ښځ.م. ۱) وړکی ګوډی؛ ۲) ډانګوره، د ګوډو شلو ډانګوري؛ ۳) د تار ریشلو د څرخې پایه.

**ګوډېدل** (gwaḍedál) مص. ل. ګوډ کېدل، په پښه معیوبېدل.

**ګوډیکه**[1] (gwaḍyáka) ښځ.م. د ګوډانو د تخرګ لرګی.

**ګوډیکه**[2] (gūḍiká) ښځ.م. ۱) وړوکې ناوه کی؛ ۲) د سپنسیو د تاوولو پایه.

**ګوډیه** (gūḍyá) ښځ.م. د تروو شرومبو د غړکې د لاستي د تړلو تسمه.

**گور**[1] (gūr) نر.م. ۱) گڼ، د ک او خپورور، د ب ډوب؛ ۲) گوردم، پاده.

**گور**[2] (gor) نر.م. ۱) مړيستون، قبر، مزار؛ ۲) اور لمانځونکی، گبر؛ ۳) ص. نر.م. برابر، سيال، ثاني، جوړه، ساری.

**گوراڅه** (goráca) نر.م. گډوړی، کند، گنځ، گوراڅه، هغه لباس چې ډېر پيوندونه ولري.

**گوراډی** (gurāḍáy) ښځ.م. ناولې، بدشکله، پوواړه، پوهاړه.

**گوراری** (gurā́ray) نر.م. غرغر کونه، گوربدنه، قهر، غوسه.

**گوراگور** (gorāgór) ص.نر.م. تېز، توند، چټک.

**گوربت** (gorbát) نر.م. (ج. گوربتان) عقاب، شاهين.

**گوربتگوټی** (gorbatgóṭay) ص.نر.م. د گوربت بچی، د عقاب بچی.

**گوربتوزمه** (gorbatwázma) ص. نر.م. د گوربت غوندې، د گوربت په څېر.

**گوربته** (gorbatá) ښځ.م. عقابه، شاهينه.

**گوربند** (gorbánd) نر.م. د اوښ يا غوايي پېښ بند.

**گورت** (gwrát) نر.م. ۱) د گوتو ترمنځ فاصله؛ ۲) د مسواکي او گټې گوتې ترمنځ واټن.

**گورتوب**[1] (gurtób) نر.م. گوروالي، گڼ توب، گڼوالي، گورتيا.

**گورتوب**[2] (gortób) نر.م. مقابله، همسري، مساوي توب، گورتيا.

**گورتی** (gwaratáy) نر.م. هغه شی چې د شهادت او غټې گوتې ترمنځ ځای نيسي.

**گورتی** (gurṭáy) نر.م. گوتمه، گوتمی، گرتی.

**گورجه** (gūrjá) ښځ.م. سره آلوچه.

**گورجی** (gūrjáy) ښځ.م.ج. يو ډول پخوانی ښځينه پڼې.

**گورجی سپی** (gūjay spáy) ص. نر.م. يو ډول ښکاري سپی.

**گورڅه** (gūrcá) ښځ.م. (ج. گورڅې) بارخو، غمبوری، اننگی، غومبوری، بغون، لغون.

**گورخر** (goraxár) نر.م. گوراخر، گورزی، غېره، غيږه، يو ځنگلي خر چې غوښه يې حلاله ده.

**گورزی** (gorzáy) نر.م. ۱) هغه کوچنی چې په قبر کې له مړي موره پيدا شي؛ ۲) گورخر.

**گورستان** (gorıstā́n) نر.م. قبرستان، هديره، مقبره، د مړو ښخولو ځای.

**گورسنگ** (gawarsáng) نر.م. يو ډول توره کلکه تيږه ده چې د ژرندې ميل وربانديې څرخي.

**گورک** (gorák) نر.م. گوارچي، گواره ساتونکی.

**گورکښ** (gorkáṣ) نر.م. قبرکنستونکی، قبرکن.

**گورکښه** (gorkáṣa) ښځ.م. گورگټی، بغسه، غسه، يو حيوان دی چې مړي له قبر نه وباسي.

**گورکن** (gorkán) ص. نر.م. و گ. گورکښ.

**گورگابی** (gūrgábay) نر.م. يو ډول ژور بوټ.

**گورگټی** (gorgaṭáy) ښځ.م. و گ. گورکښه.

**گورگرندی** (gorgránday) نر.م. قبرکن، هغه څوک چې قبر کنستل يې کسب وي.

**گورگور** (gúrgur) نر.م. غرغر، گوربدنه، گرومبدهٔ، له قهر نه گوربدنه يا غربدنه.

**گورگوره** (gwargū́ra) ښځ.م. يوه غرنۍ اغزنه ونه ده چې توري وړې خوږې دانې لري.

**گورلټی** (gorlaṭáy) ښځ.م.ج. گورکښ، غسی، هغه حيوان چې گور لټوي او مړي ترې راباسي.

**گورلڅ** (gūrláć) ص. نر.م. تندرست، چاغ، سور و سپين، غټ پټ.

**گورم** (gūrám) نر.م. ۱) پاده، گله؛ ۲) لسریه ډله، لوی جمعیت.

**گورمټ** (gūrmáṭ) نر.م. گرمټ، سوک، موک، گورموټ.

**گورمکی** (gūrmakáy) ښځ.م.ج. یو ډول چرگه، بستکی چرگه.

**گورمل** (gūrmál) مص. مت. ۱) سرسري او گونځې گونځې گنډل؛ ۲) ص. نر.م. غوسه ناک، برچن، بروس، غورځنگ کوونکی.

**گورملتوب** (gūrmaltób) نر.م. بروس والی، کاږساوی، گروت والی، خپگان، غوسه، قهر.

**گورموځ** (gurmúǰ) ص.نر.م. غصه ناک، قهرجن.

**گورموز** (gurmúz) ص.نر.م. وگ. گورموځ.

**گورنده** (gūránda) ښځ.م. کوندغال، کندغالي، کنده، ډوغل.

**گورنډ** (goránḍ) نر.م. تنگ تروش، تیاره کور، زوړ ژور قبر.

**گورنډه** (gūránḍa) ښځ.م. ۱) وړوکی او تنگ کور؛ ۲) زوړ قبر؛ ۳) غوجله.

**گورنر** (gawarnár) ص. نر.م. ۱) د یوې صوبې حاکم؛ ۲) ماشین ته د گیس رسولو پرزه.

**گورنگی** (gūrangáy) ص. نر.م. سوررنگ لرونکی آس.

**گورو** (gurú) نر.م. ۱) پیر، مرشد؛ ۲) د علم و فن استاذ؛ ۳) مج. شریر، مفسد؛ ٤) هوښیار.

**گوروالی** (gūrwā́lay) نر.م. د گوارې ساتلو کار، گله وان، پاده واني، گاهوتوب، شپون توب.

**گوروان** (gūrwā́n) ص. نر.م. پاده وان، گله وان.

**گوروانکه** (gūrwānáka) ښځ.م. شامتوره.

**گورول** (gūrawə́l) مص. مت. ۱) گڼ او گور کول؛ ۲) قهر ورته کول، په غوسه او غضب ورته خبرې کول.

**گوره** (gūrá) ښځ.م. ۱) هغه لوی سوری یا ډوغل چې د سپند د لارې په غاړه ځمکه کې شوی وي؛ ۲) نر.م. تجارتي نخښه؛ ۳) ښځ.م. سپنځری، سپنخول، د اوسپنې بوره.

**گورهار** (gurhā́r) نر.م. ۱) د زلزلې آواز؛ ۲) په بیرله پسې توگه غروپش کول.

**گوره گل** (guragə́l) نر.م. غوره گل، وچه لنده خته.

**گورهنډ** (gūrhánd) نر.م. گورنډه، گورهنډه.

**گورهنډه** (gūrhánḍa) ښځ.م. تنگ و تیاره غار، ډوغل، گورنډه، لویه کنده؛ ۲) مج. قبر.

**گوریېز** (gurayíz) نر.م. یو ډول گلېتي توپک.

**گوري** (gurí) ښځ.م. تکي برگي، په لوبو کې دوکه.

**گورۍ** (gawráy) ښځ.م.ج. گور، دلده، ورغستلی، ارغستي، ارغستلې.

**گوری** (gūráy) نر.م. گوره، د اوسپنې میده گي، وسپنځری.

**گوریجن** (gūrejā́n) فا. نر.م. دوکه باز، چلي.

**گوریدل** (gūredə́l) مص. ل. ۱) گڼ کېدل، گوربدنه؛ ۲) گڼېدل، ځان سره گڼ گڼ کول، غړېدل.

**گوري سمسه** (gūrisamsá) ښځ.م. ۱) کویل، د یو مارغه نوم؛ ۲) تورانی، تارانکه، کویله.

**گوریله** (gūrilá) ښځ.م. گوریلا؛ ۹) گوریلایي، چریکي پوځ؛ ۲) دشادو یو ډول.

**گوریمار** (gūrimā́r) نر.م. دوکه باز، چلباز.

**گوری موری** (gūraymū́ray) نر.م. ناڅاپه، نابېره، ناگهان، سمدلاسه.

**گوړ** (gūṛ) نر.م. ۱) وگ. گوره[1]؛ ۲) وگ. گوډ[1].

**گوړ** (goṛ) نر.م. په گېډه کې د باد آواز.

**گوړا** (guṛā́) ښځ.م. ۱) یوه خره ونه ده؛ ۲) یو ډول ماله ده چې پټې پرې اواروي.

**گوړابی** (gūṛābáy) ښځ.م. ۱) هغه اوبه چې له یو سوري نه راووځي او د ځړوبي شکل جوړ وي؛ ۲) د کوچنیانو یو ډول لوبه ده.

**گوړاخر** (goṛāxár) نر.م. اوښغویی، گورخر.

**گوړاکو** (gūṛākū́) نر.م. ۱) د غومبسو ځاله، د مچیو ځاله؛ ۲) یو ډول خوږ تماکو.

**گوړبانی** (gūṛbā́ṇay) نر.م. ۱) توښه، توشه، ځوری، بانی، زادراه؛ ۲) ص. توښه وړونکی.

**گوړباهی** (gūṛbā́hay) نر.م. و گ. گوړابی.

**گوړبی** (gūṛbáy) نر.م. گړوبی، گرداو، چورلندی، خارخوړی، ځرخاو، گرځنی.

**گوړدانې** (gūṛdā́ne) نر.ج. د غنمو وریته چې گوزه ورسره گډه وي.

**گوړدم** (gwaṛdám) نر.م. غټ چارتراش.

**گوړکه** (gurká) ښځ.م. د تارو کلوله.

**گوړماچ** (gūṛmā́č) نر.م. تاو شوې کولمه.

**گوړمار** (gwaṛmā́r) فا.نر.م. گوړېز، گور ساز، گوري، هغه چې گوره پخوي.

**گوړمکی** (gūṛmakáy) ښځ.م.ج. یو ډول چرگه ده.

**گوړنج**(۱) (guṛánj) نر.م. غولغولی، چورلندی، گرداب، زغومی.

**گوړنج**(۱) (gwaṛanj) نر.م. سوڼ، وړو وړو غېږ، پسېدل، غلي ځه ویل.

**گوړو** (guṛū́) نر.م. ډېر خوږ، ډېر ښه سړی.

**گوړوبی** (goṛūbáy) نر.م. ۱) د گوړې شربت؛ ۲) ډېر خوږ شی.

**گوړه**(۱) (gwaṛá) ښځ.م. د گني د شربت نه جوړه شوې خوږه ماده.

**گوړه**(۲) (guṛá) ښځ.م. تانگه.

**گوړکی** (gwaṛakáy) ښځ.م. د گور گورې په ځېر د یوې غرنۍ ونې مېوه.

**گوړي** (goṛí) ص.نر.م. گوړېز، گور ساز، په گانې کې د گوړې پخولو ماهر سړی.

**گوړی** (gūṛáy) ښځ.م ۱) مالوچ، پاغونده؛ ۲) د تارو کلوله؛ ۳) د جوارو پولی؛ ٤) د ونې یا نباتاتو شوده؛ ٥) د ځوز د گل خوږه ماده ده چې ترنجبین ترې لاس ته راځي؛ ٦) نرۍ ازغی چې د حیوانانو د خوراک وړ وي؛ ۷) یو ډول بوټی دی.

**گوړي** (gawṛí) ص. نر.م. یو ډول غنم چې غټې او اوږدې دانې او وږی لري.

**گوز** (gawz) نر.م. ښایست، ښکلا.

**گوزار** (gozā́r) نر.م. غوزار، درب، ډب، وار، وهل.

**گوزارل** (gozārə́l) مص.مت. ۱) ویشتل، غورځول، گزارول؛ ۲) ادا کول، ترسره کول.

**گوزارول** (guzārawə́l) مص.مت. ۱) غوزارول؛ ۲) ځملول، پر ځمکه راویشتل.

**گوزاره** (guzārá) ښځ.م ۱) وخت تېرونه، وخت اړونه، ساعت تېرونه؛ ۲) مج. زغم، حوصله.

**گوزاري** (gozārí) نر.م. تیک، د غوز یا بلورو په لوبه کې غټ غوز.

**گوزارېدل** (guzāredə́l) مص.ل. غوزارېدل، پرېوتل، ارتاوېدل.

**گوزارېز** (guzārī́z) نر.م. گوزاروالا، ضربې والا، ضربتي.

**گوزران** (guzrā́n) نر.م. و گ. گوزاره.

**گوزلېکه** (gozléka) ښځ.م. د یو شي ډېره لږه برخه.

**گوزموز** (gozmū́z) ص. نر.م. ۱) الېړې خبرې کوونکی؛ ۲) گوزموزی، غلی پلی.

**گوزڼ** (guzáṇ) نر.م. رپ ربی، گوزنډ، فالج، د بدن د لړزېدو یا رچېدو مرض.

**گوزڼ وهلی** (gozaṇwahə́lay) فا.نر.م. گوزنډ وهلی، د فالج په مرض اخته.

**گوږوی** (gūẓwā́y) نر.م. قلبه يي، د قلبې غوايي.

**گوږی** (gūẓə́y) ښځ.م. تاو شوې سنې.

**گوسړه** (gosṛá) ښځ.م. مضبوطه او سخته څپېړه.

**گوسندل** (gūsandə́l) مص. مت. ۱) ناگومانه کول، غافلول؛ ۲) ځان ناگاره کول، گوسنډل.

**گوسڼه** (gusə́ṇa) ښځ.م. گوسڼ، گوسړه، يو ډول غټ او پنډ مار.

**گوسه** (gawsá) ښځ.م. ۱) سنگړه، کرکنده، غټ کانې؛ ۲) يو ډول غرنی سابه دي.

**گوسه** (gosá) ښځ.م. تېله، ډيکه، ډيکه، تېل وهل، پورې وهل.

**گوسی** (gusə́y) نر.ج. يو ډول غرنی سابه دي.

**گوش** (goš) نر.م. ۱) يو ډول توره او غوړه گياه ده؛ ۲) د جنگ جگړې فيصله، روغه جوړه.

**گوشاړ** (gošā́ṛ) نر.م. صحرانی غوايي يا غوايه.

**گوشپال** (gošpā́l) نر.م. د ميرې مار، يو ډول خطرناک صحرايي مار.

**گوش خوره** (gušxorá) ښځ.م. د نوکانو د لاندېنې پوستکي پورته کېده، د اوريو غوښه خوړل کېده.

**گوشواره** (gošwārá) ښځ.م. (ج. گوشوارې) د حساب کتاب لنډيز، ميزان، توتل.

**گوشي** (góši) ښځ. نر.م. د رمو څارويو محصول.

**گوښواله** (goṣwā́la) ښځ.م. گوښه والی، ځانله والی، تجريد، انزوا.

**گوښه** (goṣá) ښځ.م. ۱) گوټ، کونج، کنج، کناره؛ ۲) خلوت، يوازې؛ ۳) کوټه، حجره، خونه.

**گوښه ناست** (goṣánā́st) ص. نر.م. په گوټ کې ناست، گوټ ناستی، ځانله ناست.

**گوښی** (gū́ṣay) ص. نر.م. يوازې، تنها، ځانله.

**گوښيځ** (goṣíj) نر.م. ۱) تاخچه، تاقچه، تاق؛ ۲) محراب، مهراب، تاخوری.

**گوښېدل** (gūṣedə́l) مص.ل. گوښې کېدل، يوازې کېدل، يوازېتوب، ځانله پاتې کېدل.

**گوښېدلی** (gūṣedə́lay) نر.م. له دين نه گرځېدلی، مرتد شوی.

**گوښی گوښی** (gūṣaygū́ṣay) ص. نر.م. ځانله ځانله، تنها تنها، يوازې يوازې.

**گوگ** (gog) ص. نر.م. ۱) هغه څه چې منځ يې تش وي، ډډ، کاواک؛ ۲) بې وقوف، کم عقل، شوده؛ ۳) نر.م. غړاسپی، غړسپی؛ ۴) تشی، د انسان او حيوان د پښتۍ او ډډې ترمنځ برخه.

**گوگا** (gogā́) ښځ.م. شور وځوږ، شور غوغا، ژړا انگولا.

**گوگار** (gugā́r) نر.م. لويه سپښته، لويه ببېړی.

**گوگړی** (gugrā́y) نر.م. له مشکنو، مريو، مرجانو يا سپينو زرو نه جوړ شوی گل دی چې ښځې يې پر تندو ځړندوي.

**گوگړ** (gogə́ṛ) نر.م. ۱) اورلگيت، گوگرد؛ ۲) يو ډول غرنی گل دی چې غرنی زنبق يې هم بولي.

**گوگړسازي** (gogaṛsā́zi) ښځ.م. د گوگړو کارخونه، د اورلگيتو فابريکه، د اورلگيتو کارخانه.

**گوگړغر** (gogaṛğár) نر.م. آتفشان غر، هغه غر چې چوې او اور پرې لگي.

**گوگړه** (gogṛá) ص. گينگړی، وريته شوي يا نينې شوي نخود يا چڼې.

**گوگړی** (gogṛáy) ښځ.م.ج. پاختکه، کوړکوړی، کوړکوړکه، گوگوشتکه.

**گوگل**(۱) (gogə́l) نر.م. ۱) د زره صندوق، د زړه خونه، د سينې قفس؛ ۲) د سينې تر تېر دننه ځيزونه لکه زړه، ينه، توری، سږي او...

**گوگل**(۲) (gugə́l) مص. مت. په منځ کې تشول، گوگول، ډډول.

**گوگلی** (goglā́y) نر.م. د بستر و ابهودلو يو ځای چې دوه دېوالونه لري او سر يې پوښلی وي.

**گوگو** (gogó) ص. نر.م. ۱) احمق، کم عقل، ساده؛ ۲) نر.م. د خطري چيغه يا غږ، آلارم، تلی.

**گوگوالی** (gogwā́lay) نر.م. ډډوالی، ډډتيا، تش والی.

**گوگوشتکه** (gogoštáka) ښځ.م. گوگوشتو، پاختکه، کوړکوړی، ببوغه، بابوغی.

**گوگوشتو** (gūgūštū́) ښځ.م. ۱) بغدادي کوتره، يو ډول غټه پاختکه ده؛ ۲) ص. کم عقل، ساده، ناپوه.

**گوگول** (gogawə́l) مص. مت. د يو شي منځ تشول يا خالي کول.

**گوگی** (gogáy) نر.م. وگ. گوگلی.

**گوگېدل** (gogedə́l) مص. ل. په منځ کې تشېدل، ډډېدل، خالي کېدل.

**گوگېل** (gogél) نر.م. گوگل، سترغلی.

**گول** (gol) نر.م. ۱) ساده، کم عقل؛ ۲) فريب، مکر؛ ۳) ص. حيران، پرېشان؛ ٤) ځار، قربان، نثار؛ ٥) په غوبل کې هغه غوايي چې پر خپل ځای ولاړ او نور غوايان ترې چاپېره گرځي؛ ٦) غونډ، غوبلرگی، گرد؛ ۷) تاوراتاو؛ ۸) د لوبو په ډگر کې هغه ځای چې د لوبو د گټلو لپاره غوره شوی وي؛ ۹) گډ، خلط.

**گولړ** (golár) نر.م. يو ډول انځر چې مېوه يې پېکه وي، ځنگلي انځر.

**گولگن** (golagán) نر.م. يو ډول وابښه دي چې سپين گل کوي او اوږد ډنډر باسي.

**گولگوله** (gulgulá) ښځ.م. ۱) پکوړه؛ ۲) خگينه.

**گول مال** (golmā́l) ص. نر.م. ۱) گډ، يو ځای؛ ۲) شکمن؛ ۳) نر.م. سازش؛ ٤) غبن، خيانت.

**گولول** (golawə́l) مص. مت ۱) حيرانول، پرېشانول؛ ۲) ويلي کول؛ ۳) ځارول، قربانول؛ ٤) گردول، غونډول؛ ٥) تاوراتاو کول؛ ٦) فتنه راپاڅول.

**گوله** (golá) ښځ.م. ۱) کپ، نمړی، قپ؛ ۲) روزي، رزق؛ ۳) گرده درنه سکه؛ ٤) د توپ گلوله؛ ٥) ص. نر.م. ناپوه، کم عقله، شوده.

**گوله انداز** (golaandā́z) ص. فا. نر.م. گلوله ويشتونکی، توپچي.

**گوله بارود** (golabarū́d) نر.م. گولۍ او باروت، وسله، مېخزين.

**گولۍ** (golə́y) ښځ.م.ج. ۱) د ټوپک گلوله، مردکی؛ ۲) ټابليټ، د دوا گولۍ؛ ۳) کلوله؛ ٤) شوتی.

**گولي پنج** (gūlipánj) نر.م. چنگاښ، پنجه پړاو.

**گوليدار** (golidā́r) نر.م. هغه ټوپک چې د چرو پرځای په کې مردکي يا گولۍ استعمالېږي.

**گولېدل** (goledə́l) مص. ل. ۱) فتنه را اوچتېدل؛ ۲) پرېشانېدل؛ ۳) ويلي کېدل؛ ٤) ځارېدل؛ ٥) غونډي کېدل؛ ٦) پېچيده کېدل.

**گوما** (gumā́) ښځ.م. يو ډول هوسی ده.

**گومارل** (gumārə́l) مص. مت. مامورول، مؤظفول، دنده ورسپارل، مقررول، استخدامول.

**گومارلی** (gumārə́lay) نر.م. موظف کړی، مقرر کړی، استخدام کړی.

**گومارنه** (gumārə́na) ښځ.م. مامورونه، مقررونه، استخدامونه.

**گوماگی** (gumāgáy) نر.م. ۱) يو ډول هوسی ده؛ ۲) خېره، هغه خېره چې په کروندو کې يې د حيواناتو او مرغانو د وېرولو لپاره دروي.

**گومامل‌ۍ** (gūmāmlə́y) ښځ.م. يو ډول نبات دی هلم، چې تخم يې د ملنگان په ځېر تور وي.

**گومان** (gomā́n) نر.م. ۱) يقين، خيال؛ ۲) قياس، اټکل؛ ۳) شک، شبهه؛ ٤) وهم.

**گومانډو** (gūmānḍū́) نر.م. گومانډی، يو ډول مرغهړی يا ستوری.

**گوماني** (gūmānī́) ص. ۱) شکي؛ ۲) يقيني؛ ۲) مج. حتمي.

**گومباټه** (gūmbā́ṭa) ښځ.م. قبا، تاخ، محراب.

**گومبته** (gūmbə́ta) ښځ.م. (ج. گومبتې) گمبته، گومبزه، گومبده.

**گومبزه** (gūmbáza) ښځ.م. و گ. گومبته.

**گومبوری** (gūmbū́ray) نر.م. غومبوری، غمبوری، اننگی، رخسار.

**گومبۍ** (gūmbə́y) ښځ.م.ج ۱) کبۍ، قبه، گومبدي ډوله وړوکی او گردی شی؛ ۲) د بکيانۍ، بوکانۍ دانه.

**گومل** (gomál) نر.م. د پلار د مال و جايداد له ميراث څخه کنايه ده.

**گومنځی** (gūmanǰáy) نر.م. يو ډول سارانی نبات دی چې د کړکي قلمونه ورنه جوړوي.

**گومنډ** (gūmánḍ) نر.م. غولی، غوچاری، د اوبو ژور ځای.

**گومه** (gūmá) ښځ.م. ۱) وېره، خوف، انديښنه، بېره؛ ۲) گومان، شک.

**گومی** (gomáy) نر.م. ۱) شک، گومان؛ ۲) وېرې اخيستی، ډار اخيستی.

**گون** (gūn) اد. ۱) نسبتي کليمه ده چې د اعدادو په پای کې د عدد نسبت ښکاره کوي - لسگون؛ ۲) نر.م. په ښاروېو د باروړلو بوری، يا ځولۍ؛ ۳) پلوشه، د پلوشې ونه؛ ٤) سرښي، لامده سرښي.

**گونټ** (gonṭ) نر.م. گوډ، گوټ، د تار گونجی چې د کاغذ له نيچې نه تاو شوی وي.

**گونټه** (gónṭa) ښځ.م. د شطرنج دانه، گوټ.

**گونجلک** (gūnjlák) نر.م. گونځې، گنجلک، تاوراتاو، غنجلک، چملک.

**گونجنی** (gūnjanáy) نر.م. چنی، د لوښو کودو د ايښودلو ځای.

**گونجه** (gūnjá) ښځ.م. گونځه، گونجتوب، چملکي.

**گونجۍ** (gūnjə́y) ښځ.ج. گنجۍ، د تارونو گولۍ، څرخۍ يا اټېران چې تارونه پرې څېږي.

**گونځه** (gū́nja) ښځ.م. و گ. گونجه.

**گونځې** (gunǰé) ښځ.ج (م. گونځه) و گ. گونجه.

**گوند**[1] (gwənd) نر.م. گوندری؛ ۱) حزب، ډله، گروپ؛ ۲) پره، جمبه.

**گوند**[2] (gond) ص. نر.م. برابر، يو هومره.

**گوند**[3] (gūnd) نر.م. ج. گنډ. کنډ، کنډوری.

**گوندری گوندری** (gundráygundráy) ص. ډله ډله، گروپ گروپ.

**گونده** (gū́nda) ښځ.م. ۱) و گ. غوندی؛ ۲) ص. نر.م. پوخ و تجربه کار سړی؛ ۲) مج. ناولی؛ ۳) گونديمار، ملگری، د جنبې انديوال.

**گوندی** (gū́nday) نر.م. و گ. غوندی.

**گوندي** (gūndī́) ښځ.م. ۱) پارټي بازي، ډله بازي، گونديماري؛ ۲) تربگني، دښمني، ميرځي، سيالي.

**گونډې** (gondé) اد. و گ. گنې، کونډې، گواکې.

**گوندی کور** (gūndaykwár) نر.م. ځنگلي کور، ځنگلي انگور، تور انگور.

**گونديمار** (gūndimā́r) ص. نر.م. پرې جنبې والا، حزبي ملگرتوب، پارټي باز، ډلې والا، ملگرتيا والا.

**گونډېتوب** (gondetób) نر.م. يو شان والی، ورته والی، همرنگي، هم شکلي.

**گوند** (gond) نر.م. گرداب، چورلنډی، اوبگرځنی.

**گونډار** (gondā́r) نر.م. زېړې شومله، لاونډ.

**گونډه**(۱) (gondá) ښځ.م. ۱) د راغبرگې کړې پښې زنگون؛ ۲) د حیوان د بار یو اړخ، انډی.

**گونډه**(۲) (gūndá) ښځ.م. یو ډول نبات دی.

**گونډی**(۱) (gūndáy) نر.م. د غوبل نه وروسته د غنمو هغه وړی چې پوره غوبل شوي نه وي.

**گونډی**(۲) (gondáy) نر.م. د اوښ زنگون بند، یو پړی دی چې د اوښ زنگون پرې تړي.

**گونډېل** (gondél) نر.م. د مست اوښ د دواړو گونډو غاړې سره د تړلو طریقه.

**گونډیمال** (gūndimā́l) نر.م. گنډیمال، د گونډي دویم ځل غوبل کول.

**گونر** (gūnár) نر.م. یو نبات دی چې خوړل کېږي.

**گونگ** (gwang) ص. نر.م. گونگی، گونگا، له څه ویلو او خبرو کولو بې برخې، گونگو.

**گونگټ** (gungáṭ) نر.م. مرغتهانه، غوزاړی، خزدکه؛ ۱) یو تور رنگ خزنده ده؛ ۲) ص. تک تور و چالاک لنډی سړی.

**گونگټی** (gungaṭáy) ښځ.م.ج. یوه سور رنگې وړه حشره ده چې د سبزیو پاڼې خوري.

**گونگرو** (gūngrū́) نر.م. جرس، گنگرو، د سپینو زرو جړنگانی یا شرنگانی.

**گونگري** (gūngrí) نر.ج. واړه واړه جرسونه چې د څارویو په غاړه کې یا ډمې یې پښو ته د شرنگاري لپاره اچوي.

**گونگرۍ** (gūngráy) ښځ.م. پایزېب، پایله.

**گونگړ** (gūngáṛ) ص. نر.م. ۱) شادیوان، اجړ؛ ۲) یو غرنی قوم چې مال ډنگر ساتي.

**گونگړی** (gūngaṛáy) ص.نر.م. ۱) و گ. گونگ؛ ۲) تتله، نښت ژبی، چاړا؛ ۳) د گونگړي مفرد.

**گونګړي** (gūngṛí) نر.ج. چولې، تومبولی، د چنو، جوارو یا نورو حبوباتو اېشولې شوې دانې، شورنخود.

**گونګړی** (gūngṛáy) ص.نر.م. گانگوری، تړتړی، نښت ژبی.

**گونګړي والا** (gūngṛiwālā́) ص.نر.م. گونګړي خرڅوونکی، چولې والا.

**گونگ سونگ** (gúngsūng) ص. ۱) گم سم، کوڼ و چاړا؛ ۲) ببخي غلی او چوپ.

**گونگنی** (gūngṇáy) نر.ج. و گ. گونګړي.

**گونگو** (gungū́) نر.م. ۱) گنگو، زعفران؛ ۲) یو ډول بوټی دی؛ ۳) و گ. گونگ.

**گونگوالی** (gungwā́lay) نر.م. ۱) خبرې نه کول، د خبرو توان نه لرل؛ ۲) ابهام، پټوالی.

**گونگور** (gungū́r) نر.م. یو غرنی بوټی دی چې زېړ رنگ ورنه جوړېږي.

**گونگوری** (gungū́ray) نر.م. د انگورو وابنکی.

**گونگوړه** (gungū́ṛa) ښځ.م. و گ. گانگوړه.

**گونگوړۍ** (gungū́ṛáy) ښځ.م.ج. و گ. گانگوړۍ.

**گونگوسه** (gungusá) ښځ.م. و گ. گنگوسه.

**گونگوماښام** (gúngūmāṣā́m) نر.م. تیاره ماښام، و گ. گنگوماښام.

**گونگه** (gūngá) ښځ.م. یو بوټی دی چې د سترگو د ناروغیو لپاره یې لوگی کوي.

**گونگه روژه** (gūngaružá) ښځ.م. چوپه چوپتیا، قراره قراره بشپړه چوپتیا، غلي غلیا.

**گونگی** (gūngáy) نر.م ۱) بوم، یو سپېره مارغه دی؛ ۲) و گ. گونگ؛ ۲) د انگورو وابنکی؛ ۳) چاړا.

**گونگېدل** (gūngedə́l) مص. ل. گونگ کېدل، گونگی کېدل، چې خبرې نه شي کولای.

**گونه** (gūná) ښځ.م. څېره، رنگ، بڼه، جوسه.

**گونه زېړ** (gūnazə́r) ص. نر.م. زېړ مخی، زېړا، زېړبوړق، زېړ غوړی.

**گونی** (gūnə́y) ښځ.م.ج. ۱) بوری، بوجی؛ ۲) الوی جوال، گوندی، گونۍ.

**گونې** (gūné) ښځ.م. گونیه، د تار غوندې شنه څرمن چې د پنو په پسکیو کې یې د ... ول لپاره گنډي.

**گونیا** (gūnyā́) ښځ.م. ۱) گونیا، د ختگرو د لرگي یوه آله چې د دېوال کوږوالی برې معلوموي؛ ۲) دگوتې هغه ځای چې غمی په کې کېښودل کېږي؛ ٤) یو دري څنډېزه هندسي آله.

**گوڼ** (gūṇ) نر.م. ۱) گونه، څېره، بڼه؛ ۲) وگ. بوڼ؛ ۳) وگ. گوڼي؛ ٤) په پوزه کې بنگېدل، بنگ بنگ کول.

**گوڼس** (gūṇás) ص. نر.م. گوزموزی، هغه چې د زړه حال چا ته نه وایي.

**گوڼه** (gūṇá) ښځ.م. د جلال الدین اکبر پاچا د زمانې یوه سکه.

**گوڼی** (gūṇay) نر.م. د حبوباتو یوه وړه سپېږی.

**گوڼی** (gūnə́y) ښځ.م.ج. گاونه.

**گوڼېدل** (gūṇedə́l) مص. ل. گوناری کول، گوڼ گوڼ کول، غلې غلې خبرې کول، پسېدل، بنگېدل.

**گوواته** (gūwāṭá) ښځ.م. گوواته، د غوایو گوهاته، د څپیاکو ډېری، گواته.

**گووار** (gūwā́r) نر.م. گوهار، د غوایانو پاده.

**گوهر** (gawhár) نر.م. گهر، جوهر؛ ۱) مرغلره، ملغلره، یو قیمتي کانی؛ ۲) اصل، نژاد، بېخ.

**گوهري** (gawharí) ص.نر.م ۱) گوهر خرڅوونکی، گوهر والا؛ ۲) د گوهرو په څېر.

**گوی**[۱] (goy) نر.م. ۱) بلد، سره، هغه غوایی چې په بیوې کې بلد وي؛ ۲) د ژرندې غټ لرگی؛ ۳) پندوس، بندوسکه.

**گوی**[۲] (gáway) ... م. د غره غاښی، ورو کی کوتل، کنډو.

**گویا** (goyá) ق. ... نکه چې، غوندې، مثل، ته به وایې؛ ۲) ... دې، بالفرض؛ ۳) ص. خبرې کوونکی، ... نکی، ښه تقریر کوونکی.

**گویایي** (goyāyí) ښځ.م. جرارتیا، د وینا طاقت، د خبرو کولو ... .

**گوېر** (gawír) نر. ... د غوایانو پاده.

**گوېږ** (gawéẓ) نر. ... پوښتنه، گروېږنه، تپوس.

**گوېږل** (gaweẓə́l) ... ص. مت. گېږل؛ ۱) لټول، پوښتنه کول، معلو... ل؛ ۲) د چا خبر اخیستل.

**گویک** (guyák) نر.م. ... ښځینه کوښو نعل.

**گویول** (goyawə́l) ... ص. مت. جوتې کول، غویی قولبې کولو ته چمتو کول.

**گویې** (góye) ښځ.ج. کنځاوې، بدې خبرې.

**گه** (gah) یو وخت، کله.

**گهل** (gahə́l) مص. مت. ۱) گډوډ او بې ترتیبه گنډل، رفو کول؛ ۲) د جوال خوله گنډل.

**گهوتې** (ghoṭí) ښځ.م. گوتې، د یوه بوټي نوم چې په ... انې درملنه کې کارېږي.

**گهور** (ga...r) نر.م. ۱) چتل او ناولی؛ ۲) خړ او ناړو.

**گهه** (gahá) ښځ.م. ۱) بې ترتیبه او گډوډ گنډل؛ ۲) ... ... اري، گل کنه.

**گهی** (gahə́y) ص.نر.م. ژوبل، ټپي، زخمي، گایل.

**گهی** (gahə́y) ښځ.م. ۱) د جوال سنې؛ ۲) د سامان لپاره وړه کوټه.

**گهیځ** (gahíj̈) نر.م. سبا، سحر، سهار.

**گهیځ ښه** (gahij̈ṣá) ق. گهیځ دې ښه، سهار دې ښه، سهار په خیر.

**گهیځ مهال** (gahiǰmahā́l) نر.م. سهار مهال، د گهیځ پر وخت، بامدادان.

**گهیځنی** (gahiǰanə́y) ښځ.م. سهارنی، سباناری، بربخری،

**گهیځ نېکمرغه** (gahiǰnekmárğa) ق. وګ. گهیځ ښه.

**گې** (ge) د پښتو الفبې د (ږ) توري تلفظ یا غږ.

**گی** (gay) اد. د تصغیر نښه ده، لکه بالښت گی.

**گیا** (gayā́) ښځ.م.ج. واښه، د څارویو لپاره واښه.

**گیاچو** (gyāčū́) نر.م. وګ. گاوچو.

**گیاخور** (gayāxór) ص. نر.م. وښور، واښه خور، گیاخورونکی.

**گیاخوري** (gayāxorí) ښځ.م. واښه خورنه، گیا خورنه.

**گیان** (gayā́n) نر.م. ۱) علم، پوهه، دانش؛ ۲) عقل؛ ۳) علم الهي، علم ومعرفت.

**گیاني** (gayānī́) ص. نر.م. ۱) عالم، فاضل، پوه، دانا، پوهاند؛ ۲) بزرگ.

**گیاو** (gayā́w) ص.نر.م. وګ. گهی.

**گېبی** (gebáy) نر.م. یو ډول تنګې پایڅې لرونکی گونځوالا پرتوګ، گونځور پرتوګ.

**گیپ** (gip) نر.م. سمدستي، په ناخبره کې.

**گیت** (git) نر.م. ۱) فرار، تېښته؛ ۲) سندره، نغمه.

**گیتار** (gitā́r) نر.م. د موسیقي یوه آله ده چې په شاباز غږول کېږي.

**گیتره** (gitrá) ښځ.م. وړه څولی.

**گیتګیتانی** (gitgitā́nay) نر.م. یوه لوبه ده.

**گیت وهل** (gitwahā́l) نر.م. له یو مجلس نه ځان ویستل.

**گیتۍ** (gitə́y) ښځ.م.ج. چره، گولۍ، د بم چره.

**گیتی** (gitáy) نر.م. د تار گونجی، کوکړی، گونټ.

**گېټس** (geṭás) نر.م. هغه پټی چې پوځیان یې پر عسکري بوټانو له پاسه تړي.

**گیټکی** (giṭkáy) ښځ.م.ج. وړوکې گیټۍ، گټکی، وړوکي کاڼي.

**گیټه** (giṭá) ص. نب. د غوسې له امله خراشیني، خپه، غلی.

**گیټۍ** (giṭə́y) ښځ.م. ۱) گیټکی، وړوکي غونډې کاڼي؛ ۲) د چلم د تونې یا سرخانې گردی لوټه؛ ۳) د تار کلوله؛ ٤) د پښې ښنګری یا بجلک.

**گېټی** (geṭáy) نر.م. ټیکری.

**گیچ** (gič) ص.نر.م. ۱) گنگس، بېهوښه، بې حاله؛ ۲) د چیني لوښو ماتې ټوټې.

**گیچه** (gičá) ښځ.م. پوتل، پرتل، څوکل، گیځه، د ځینو شیانو فضله، تفاله.

**گیچۍ** (gičə́y) ښځ.م.ج. ۱) دهډوکي مغز، چغزی، چزغی؛ ۲) پوڅه.

**گید** (gid) نر.م. نرښځی ټپوس، هغه ټپوس چې ویل کېږي شپږ میاشتې نر وي او شپږ میاشتې ښځه.

**گیدانه** (gidānā́) ښځ.م. هغه شی چې په اغزو، لتو او رینجو کې پټ وي.

**گیدړ** (gidáṛ) نر.م. ۱) شغال، چغال؛ ۲) ص. وېرېدونکی، ډارن، بزدل.

**گیدړ باغ** (gidəṛbā́ğ) نر.م. وګ. کچماچو.

**گیدړ تیږه** (gidəṛtī́za) ښځ.م. یو ډول متبرکه تیږه ده چې خلک یې په جېبو کې گرځوي.

**گیدړسنګ** (gidəṛsáng) نر.م. وګ. گیدړسینګۍ.

**گیدړسینګۍ** (gidəṛsingə́y) ښځ.م ۱) گیدړسنګ، یوه کُلکه غوټه چې د گیدړ له تندي نه لاس ته راځي؛ ۲) یو ډل متبرکه تیږه.

**گیدړ کور** (gidəṛk[illegible]) نر.م. گیدړ باغ، کچماچو، یو ډول خوندور سابه دي.

**گیدړواده** (gidaṛwā́da) نر.م. په شنه آسمان کې د باران ورېدنه.

**گیدړۍ** (gidaṛáy) ښځ.م. ۱) د گیدړې په شېر چاپلوسي؛ ۲) ځان سره خندل؛ ۳) بلونگړی، یو وړوکی حیوان چې اوږده وېښتان لري.

**گیدو** (gidó) ښځ.م. زړه گیدړه.

**گېدی** (gedáy) ص. نر.م. کم عقل، احمق، نادان.

**گېډبند** (geḍbánd) نر.م. د خره او اوښ تر گېډې لاندې یو پړی دی، چې بار یا وړې ټینګ ساتي.

**گېډبنگ** (geḍbáng) ص. نر.م. گېډو، گېډور، د گېډې مین، ډېرخور.

**گېډبه** (geḍbá) نر.م. ۱) گېډۍ وړونکی، گېډې والا؛ ۲) گېډور، خېټور.

**گېډو** (geḍū́) ص.نر.م. (ج. گېډوان) گېډور، ډېرخور.

**گېډور** (geḍawár) ص. نر.م.ج. خېټور، د لویې گېډې خاوند.

**گېډه** (géḍa) ښځ.م. خېټه.

**گېډۍ** (geḍáy) نر.م. ۱) بار، پن؛ ۲) جنین.

**گېډۍ** (geḍáy) ښځ.م. ۱) د گلو یا بل شیز غونچه، د گلانو گېډۍ یا دلۍ؛ ۲) د غنمو ستری.

**گېډۍ کېدل** (geḍaykedə́l) نر.م. ۱) گېډۍ جوړېدل، جوړول؛ ۲) پر دښمن د حملې په صورت کې اتحاد او اتفاق.

**گېر** (ger) نر.م. ۱) حصار، بند؛ ۲) د کوچنیانو یوه لوبه ده.

**گیرا** (girā́) ص.نر.م.ج ۱) بلد، روږدی؛ ۲) چالاک.

**گېرچاپېر** (gerčāpér) ق. نر.م. شا وخوا، چاپېر.

**گېروپېر** (gerwpér) نر.م ۱) و.گ. گېرچاپېر؛ ۲) چال و فریب، دوکه.

**گېرگادی** (gergā́day) نر.م. گرگادي.

**گیرگیره** (girgirá) ښځ.م. دلده.

**گېرگیری** (gergiráy) نر.م ۱) گرگری؛ ۲) د پایې په شېر یوه غونډۍ پرزه؛ ۳) د کوهې څرخ.

**گېرل** (gayrə́l) مص. ل. ټی کول، کانګې کول.

**گېرو** (gerū́) نر.م ۱) یو ډول سره خاوره؛ ۲) دد ېوال په څنګ کې بل دېوال چې د پردې لپاره جوړېږي.

**گیره** (girá) ښځ.م. ۱) توبره، وړه خولۍ؛ ۲) هغه لرګی چې د بیوې تیر له کونډې سره کلکوي؛ ۳) ص. د جنګ لپاره تکړه کړی شوی مرز.

**گېری** (geráy) نر.م. ۱) د عرابې کړی یا حلقه؛ ۲) د کوترې نر؛ ۳) یو ډول سابه.

**گیرۍ** (giráy) ښځ.م. ۱) د جوارو په وږي کې نرۍ پرده؛ ۲) د نوکانو د بیخ د غوښې خوره، مخاله؛ ۳) یو ډول غټه ونه ده؛ ٤) د قولبې یوه آله.

**گیرې بیرې** (girebire) ص. پرې پرې، هغه سترګې چې د کومې ناروغۍ یا صدمې له امله ستورې ستورې غونډې ښکاري.

**گیزارۍ** (gizā́ray) نر.م. راشتلی، گڅارۍ، د غنمو یا جوارو هغه پاتې شونې دانې چې درشې د تللو نه وروسته په درمند ځای کې پاتې شي.

**گیږکه** (giẓ́aka) ښځ.م. عککه، ویږي، ویګبې، گوبکه، یو اوږده لکۍ لرونکی مرغی ده.

**گیس** (gays) نر.م. یو ډول ډېوه یا څراغ.

**گیشکی** (giškáy) نر.م. جیزګی، شیزګی، اجغی، د شکونړ د کورنۍ یو حیوان دی.

**گیگړ** (gigáṛ) نر.م. یو غرنی بوټی دی چې سور رنګی گل کوي.

**گېل** (gel) نر.م. رغړېدلی، رغښتی، کولهدلی.

**گېلاس** (gelā́s) نر.م. ۱) د آلو بالو په شېر یوه مېوه ده؛ ۲) د اوبو یا چای چښلو اوږد لوښی.

**گېلټ** (geláṭ) نر.م.ج. یو ډول فلز دی.

**گېلول** (gelawə́l) مص. مت. کولول، رغړول.

